# څرک

ځوارلسم کال، لومړنی، پرلپسې ۹۶ یمه ګڼه،
عقرب۱۳۹۵ل صفر۱۴۳۸هق، نومبر۲۰۱۶

## د امریکا نوی قیادت اړ دی،
## چې نور د افغانستان اشغال
## ته د پای ټکی کیږدي!!

د نړیوالي عالم، شیخ القران والحدیث مولانا حمدالله جان (داجوي)
مدظله العالي د ژوند لیك یو څرک په څرک کې



## ژیړه دبه

- آیا د کندوز د فاجعې عاملان به مجازات کړای شي؟
- «آیا ترمپ، «گرباچف» ایالات متحده می شود؟
- افغان فوج او د امریکایانو هیلي ...!!!
- امریکا ! او بل یوولسم ستمبر!!
- د روسیې وحشت، د امریکا منافقت او د شام مظلوم مسلمانان
- فشار !!

د جهاد له ړومبیو کرښو یادابښتونه، خاطرې او د سترګو لیدلی حال










**علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه**

**څوارلسم کال، لومړی، پرلپسې ۹۶مه ګڼه، عقرب۱۳۹٦ل، صفر۱٤۳۸هق، نومبر۲۰۱٦م**

## امتياز :

| | |
|---|---|
| **دا متيازخاوند :** | دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون |
| **مسؤل مدير :** | عبيد تنوير |
| **ليکوال پلاوی :** | ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب |

## ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲٤۰ کلدارې |
| امريکا : | ٦۰ ډالره |
| اروپا : | ٦۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

## يادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

**تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه**

## پتې :

srak_111@yahoo.com

# لړليک






# د امریکا نـوی قـیادت اړ دی،

## چې نور د افغانستان اشغال ته د پای ټکی کیږدي!!

د افغانستان دروانې جګړې په باب دامریکا دنوي ولسمشر (ډونالډ ټرمپ )دغه دریځ ، چې له افغانستان څخه به ټـول امریکـايي پوځونه راوباسي، مالي مرستې به پرې بندي کـړي اودافغانســتان پرځـای بـه دامریکـا اسـتحکام اوامنیـت تـه پاملرنـه وکـړي ،پـه خپلوغلامانواولاسپوڅوسخته غلبله اووارخطايي ګډه کړي.

دکابل دګډوډ رژیم ولسمشراوهم یې اجرائیه مشرپه خپلوبیلابیلوپیغامونوکې (ډونالډ ټرمپ) ته دعـذرونو اوسـوالو نـو لـویي اوپلنـي ځولي غوړلي ،چې پام ! لدوئ څخه مخ وانه ړوي ، امریکایی پوځیان ونه باسي مرستې پرې ونه دروي اوپه نیمه لارکې یې خوشي نکړي

خوتردې دمه دټرمپ موقف هماغه پخوانی ده ، چې دافغانستان جګړې دامریکا اقتصاد ته لویه جټکه ورکړي ، زرګونه پوځیان یې ګوډومات اولیونیان شوي اودامریکا امنیت او نړیوال حیثیت یې ترجدي پوښتنې او ګواښ لاندي راوستی .

که څه هم په افغانستان کې امریکايي غلامان او هغوئ چې له تیرو ۱۵ کلونوراهیسي له امریکايي ډالرو تغذیه کیدل لاهم په دې خوشبینی کې دي چې ( ټرمپ ) به یې یوآځې پرینږدي اوکومې خبرې چې هغه دافغانستان په اړه کړي ممکن په هغه به لـه سره غـور وکړي ، خودچارو زیاتره کارپوهان په دې باوري دي چې ټرمپ دانتخاباتي کمپاین په ورځوکې کومه تګلاره اعلان کړي هغوته به لدې امله دعمل جامه وراغوندي چې دهمدې موقف له امله امریکایانو ټرمپ ته ترجیح ورکړه

امریکایان اوټرمپ دافغانستان جنګ د امریکا د تاریخ تر ټولو اوږد، خـونړۍ او بـدمرغي جګـړه بـولي ،د۱۵ کلونوپـه اوږدوکـې امریکاخپلې ټولې حربې اودسیسي استعمال کړي > مجرب جنرالان یې له هرډول بېرحموجنګي ستراتیژیانو سره افغانستان ته راولیږل ، ناټو، اروپا اوټوله سیمه یې په زور او نورو لالچونه له ځان سره په جګړې ولاړه وساتله ، تر۵۰ زره زیاتو ناټوعسکروته مرګ ژوبلـه واوښته ، نیږدې دوه ټریلیون ډالریې خاورې کړل ، خوپه هغه سربیره یې دکابل رژیم ددې جوګه نشوکړلی چـې دافغانســتان پـه یـوه وړوکي ښارګوټي اوحتی پلازمینه کابل کې هم امنیت تامین اودخپورفساد ګلم ټول کړي

نوځکه مونږ ویلای شو ، چې ټرمب دیوه ژور اوعمده امریکايي مصلحت اوګټو له مخې اړ دي چې دافغانستان له جګړې څخـه لاس راوباسي ، دامریکايي پوځیانومرګ ژوبله ودروي او هرکال دملیاردونو ډالرو له لګښت چې اکثریت امریکایان یې بې هـوده اوبـې ځایه شمیري له خپلو اوږدو یې وغورځوي .

له بل لوري دافغانستان اسلامي امارت هم دیوه څرګند پیغام اواعلامیې په خپرولو سره ټرمپ متوجه کړ چې دبوش او اوباما سرتبمه اوبې مانا تګلارو ته دوام ورنکړي اود افغانستان اشغال ته ارومرو دپای ټکی کیږدي ، دغـه راز پـه لنـډو ورځـوکې دبګـرام په هوايي ډګر کې دلسګونو امریکايي عسکرو مرګ ژوبله اوهم په مزار ښار کې دجرمني په اتباعو پریکنده برید (ډونالـډ ټرمـپ) اونوي امریکایی قیادت ته داسلامي امارت له لوري بل صریح پیغـام ولیـږدول شـو چـې د افغانســتان پـه بـاب دبـوش اواوبامـا له وحشي تګلارو ته بیزاري وښیی اوهغه سیاسـت اوتګـلاره خپلـه کـړي چـې پـه منطـق او معقولیـت ولاړه وي کنـه دبګـرام اومزار ورستیو پیښو په څیر دې دنورو مکررو پیښواوسترو زیانونو ګاللو او زغملوته پوره امادګي ولري .

# امریکا!

## او بل یوولسم ستمبر!!

بشیرهمدرد

پنځلس کاله وړاندې دستمبر په یوولسمه نیټه دامریکا په دوه لویو ښارونو (واشنګټن او نیویارک) بریدونه وشول،امریکا دهغو بریدونو پړه په مسلمانانو واچوله او نړۍ کې یې په هغوی ( مسلمانانو) زمکه سورتنور وګرځوله، نن یو پنځلس کاله وروسته یو واربیا په امریکا یو داسې خطرناک برید وشوچې دتیرو بریدونو سره توپیر په دې کې دی چې امریکا دهغو بریدونو( یوولسم ستمبر) دپړې ګوته شیخ اسامه بن لادن او دهغه ملګرو ته ونیوه اود دې تازه برید دپړې ګوته یوه امریکا یې پانګوال او جمهوریت غوښتونکي ډونلډ ټرمپ ته نیول کیږي ...

ډونلډ ټرمپ په داسې حال کې دامریکا ۴۵م ولسمشر غوره شو،چې هغه له څو میاشتو راهیسې لومړی د امریکایي میډیا لخوا او بیا د نړیوالې میډیا له لوري د یوظالم، بدکردار، بداخلاق ،درواغجن، نیشلسټ، دمسلمانانو دقوي دښمن او متعصب شخص په توګه معرفي کیده او دهغه په مقابل کې هیلاري کلنټن نرم مزاجه، منخلاري او دولسمشرۍ لپاره غوره کاندیتوره یې وړاندې کوله، میډیا یې چینلونو دوامدار دهیلاري کلنټن په ملاتړ راپورونه اومعلوماتي سروې ګانې خپرولې چې نړیوالو او دامریکا خلکوته یې داباور ورکاوه چې هغه سل په سل ګټونکې او دټرمپ څخه وړاندې ده...

خو ناڅاپه د ټاکنوپایلې دټولو مفروضو، تخمینونو، اټکلونو ، وړاندینو او سروې ګانو دارقامو برعکس را ووتې او دتمې او توقع خلاف ټرمپ میرمن هیلارې کلنټن ته غابس ماتونکې شکست ورکړ او نړیوال یې هک پک کړل چې درایو اچولو تروخته میډیا میډیا کوم دانتخاباتو بایلونکی ښود هغه درایو ترشمیرلو وروسته د ډېر دروند اکثریت په ترلاسه کولو سره دټاکنیزې سیالۍ وړونکی او ګټونکی اعلان شو.

هو! په دې سره رښتیا هم نړیواله سطحه او په تیره امریکا کې دمیډیا ځواکمن رول او کردار په ټکان خوړو هغسې- پرمخې نسکور اوپریوت څنګه چې دستمبر په یوولسمه دنیویارک دسوداګرۍ نړیوال مرکز اسمان څک برجونه دبریدونو په ترځ کې پرمخې نسکور او خاورې ایرې شول...

دیوولسم ستمبرنه ۱۵کاله وروسته دیوولسمې میاشتې ( نومبر) په ۹مه نیټه چې څه پیښ شول په کې ضرور یو سبق شته د۲۰۱٦ زکال دیوولسمې میاشتې (نومبر) په نهمه نیټه دامریکا یې ولسمشر یزو ټاکنو د پایلو اعلان ثابته کړه چې

نړیواله میډیا تل حقایق ناسم تبلیغوي همیشه خپل راپورونـه د جعلي ارقامو په استناد جو اوبیا یې وړاندې کوي اوبل جوته شوه چې میډیا پیرل کیدای شي خو حقایق نه پیرل کېږي!

ښکاره شوه چې دمیډیا په مټ درایـه اچونکـو زړونـه او ماغزه پیرل ناشونې دي کـه وای نـو هـیلارې کلنټن بـه لـه ټرمپ نه زیاتې رایې ګټلې وي ځکه دامریکا ۲۴۰ ورځپاڼو په ښکاره له هیلارې څخه ملاتـړ کـاوه هـم دا راز دامریکـا ټولـو سترو تلویزونویې په ملاتړ او ننګه خپرونې کـولې تـردې چـې سي این این ته تلویزون خو ته دهیلارې کلنټن دخبري شـبکې نوم ورکول شو یواځې ۱۹ امریکایي ورځپاڼو دټرمپ نه ملاتـړ کاوه دنیویارک ټایمز واشنګټن پوسټ لاس اینجلس ټـایمز پـه څېر لویو نړیوالو ورځپاڼو دهیلارې ملاتړ کـاوه اوپـه ښـکاره یې دعوه کوله چې درواني انتخابي سیالی ګټـونکې هـیلا رې کلنټن ده نـه ډونلـډ ټرمـپ هغـو پخپلـو سروې ګـانو ، راپورتاژونو او راپورونو کې دهیلا رې دبري وړاندوینې کولې خو دانتخاباتو دپایلو په راتلو دهغو ورځپاڼو ټـول تحلیلونـه او اټکلونه سل په سلو کې ناسم او دروغ ثابت شول.

ځکـه دغـه ورځپـاڼې اخسـتل شـوې وې، د هغـو راپـور لیکونکي او تحلیل ګران په لویو ښارونو کې ناست ول او بس دتخمینونو په لګولو یې دهـیلارې دبریـالیتوب دعـوې کـولې دلـري پرتـو سـیمو او کلیوالـو علاقـو کـې دمیشـت خلکـو داحساساتو نه هغوی ناخبرول، حال داچې په کلیوالو سیمو او ښارونو څخه دباندې ډونلډ ټرمپ دملاتړکوونکو سلنه دهیلارې څخه پورته وه خو میـډیا والـو تـه نـه وو معلـوم بـس یـواځې دښارونو دننه دغونـډو او جلسـو پـه کتـو یـې امریکایـانو او نړیوالو ته ددې باور ورکولو کوښښ کاوه چې هیلارې کلنټن دامریکا دګټو لپـاره پـه څـوواره غـوره ده او کـولی شي چـې دامریکا نړیوال موقف څخه ننګه او دفاع وکړې

دمیډیا د دومره زیار او تبلیغ بـاوجود پـایلو وښـوده چـې میډیا امریکایـانو تـه دروغ ویـلي او اکثریـت خلـک دټرمـپ پلویـان وو چـې دمیـډیا دتبلیـغ او پروپاګنـد تـر اغیـز لانـدې رانغلل په بل تعبیر دامریکا اکثریت وګړو دامریکا دشته نظـام او میډیا دکردار په ضد بغاوت وکړ!!

بله دحیرانتیا وړداده چې په سـیاسي چـارو کـې د ډونلـډ ټرمپ تجربه دنشت په حساب ده او په ظـاهره یـو غیـر فعـال سیاسي تن دی او دا بیخي نده پیښه چې یوغیر فعال سـیاسي شخص دټولو اټکلونو خلاف ولسمشر غوره شي.

دکتونکو په نظـر دا اصـلاً دټرمـپ دبـري پـه شـکل کـې دامریکا دخلکو لخوا دشته امریکایي نظام پرضد دبغـاوت یـوه قوي څپه او جټکه ده چې هغوی دغه نظام نـور نـه غـواړي او تري تنګ راغلي هغویته اوسنی استکباري نظام دمنلو وړنـدې هغوی یو نه یوډول تغیر او بـدلون لیـدلو تـه لیـوال دي ولـې امریکا یان حسوي اوویني چې دهمدې ملعون نظام اوامریکـا یې سیاست په وجه د امریکایانو لپاره د نړۍ هر کونج او کنـار جهنم دی هیڅ امریکا یې وګړی په نړۍ کې پـه خلاصـو ښـو خلاصې تنې نشي ګرځیدای هرچیرې چې چاته امریکا یې تبـع په نظر ورشي خلک یې د وینو څکلوته تـږي دي لـه دې املـه پـه امریکایـانو ټولـه نـړۍ نـا ارامـه ده او دیـو جـدي رواني اضطراب ښکار دي نو چې هـر کلـه دکـوم کاندیـد لـه خـولې دبدلون ناره واوري دهم هغه پسې درومي. له شک پرته په تیر ټاکنیز کمپاین کې ددونلډ ټرمپ شعار بـدلون راوسـتل پـه دې

وجه دامریکا دخلکو لویې سلنې ورته رايې واچولې او هغه یې سپینې ماڼۍ ته ولیږه.

هم دا راز په افغانستان ، عراق او سوریه کې روانو جنګونو هم دامریکایانو اذهان بدل کړي هغوی هره ورځ امریکا ته د مړوڅخه ډک لسګونه تابوتونه ویني چې ور ځي او دوی ځوروي ټرمپ دخپل انتخابي کمپاین په مهال ځینې داسې څرګندونې وکړې چې دهغو نه هم دامریکا داوسني نظام څخه دبغاوت بوی ځي او هغه ددې غوښتونکی دی چې دامریکا په کورني او نړیوال نظام کې تغیرات رامنځته کړي لکه امریکا ته دبهر څخه دناقانونه کډوالو دورتګ مخنیوی ، دمیکسیکو په پوله دیوال جوړول امریکا څخه دمسلمانانو شړلو په اړه ټرمپ قاطع دریځ نیولی کوم چې په حقیقت کې دامریکا دعام ولس دغوښتنو ترجماني ده ځکه دامریکا خلک له شک پرته دنړۍ په سطحه ترټولو لوی متعصب ولس دی هغوی په دې اند دي چې امریکا یواځې دامریکایانو لپاره ده ترډیره ټرمپ هم ددغه دریځ ملاتړی دی هغه غواړي چې امریکا کې یواځې سپین پوستیان امریکایان په هر څه قدرت ولري او په مقابل کې تورپوستیان باید کمزورې ونډه ولري ددغه ډول پلانونو او ارادو په درلودو خلکو ډېرې رايې ټرمپ ته واچولې او هغه یې دامریکا لپاره ۴۵ولسمشر غوره کړ

اوس په نړۍ کې په دې ښېلا ښېل بحثونه روان دي، چې میرمن هېلارې کلنټن ولې ټاکنې وبایللې؟ په دې باب ګڼ شمیر نور لاملونه هم وړاندې کوي یو دهغو نه دادی چې دامریکا سپین پوستي خلک چې دامریکا دنفوسو نژدې ٦٢ سلنه جوړوي دهیلارې کلنټن په مقابل کې ټرمپ ته یې شاوخوا ٦٩سلنه رایې ورکړې او میرمن کلنټن ته یې ٣٦سلنه



رايې ورکړې داچې ولې دامریکا سپین پوستو ټرمپ ته زیاتې رایې ورکړې او دهغه سیالې میرمن هیلارې ته نه؟ ترټولو عمده وجه یې داده چې ټرمپ سپین پوستوته باور ورکړ چې امریکا یواځې او یواځې د دوی (سپین پوستو) هېوادده دلته اصلي واک دوی به لري او هیلارې کلنټن بیا په دې اند وه چې امریکا دسپین پوستو او تورپوستو ګډ هېواد دی او دواړه نژادونه په ګډه دامریکا په ترقۍ او خوشالۍ کې رول لري چې دسپین پوستو امریکایانو لپاره دغه وینا خوند نه ورکوي دغه لامل و چې هیلارې کلنټن دتورپوستو او هسپانوي نژادو څخه دټرمپ په مقابل کې زیاتې رایې ترلاسه کړې خو دسپین پوستو څخه دزیاتو رایو په ترلاسه کولو کې پاتې راغله.

دانتخابي کمپاین په مهال جوته شوه چې دونلډ ټرمپ یوتنګ نظر او متعصب انسان دی دبري ترلاسه کولو وروسته هم دخلکو دسختو او تندو نیوکولاندې دی ځکه دکډوالو په اړه وایي: چې دامریکا څخه په ١١ ملیونه ناراجستر شوي کډوال شړي او دمیکسیکو په پوله به زرمیله اوږد دیوال جوړوي په ورته توګه دسوري کډوالو شړل هم غواړي او هم په مؤقت ډول دهغو هېوادو څخه دکډوالو په ورتک بانډې بندیز لګوي چې کوم دامریکا په اند ترهګري صادروي

ټرمپ کـه څـه هـم يـو سـياسي شـخص نـدی بلکـې يـو کاروباري او سوداګر دی نو هم دا وجه ده چې سياسي اندونـه او پاليسـې يـې پـه سـمه توګـه نـده روښـانه خـو د يوشـمير څرګندونوڅخه دراتلونکي په اړه او دځينو هېوادو په اړه دهغـه عزايمو پيژندل اسانه کېږي لکه:

## سعودي عربستان:

برېښي داسـې چـې ټرمـپ شـايد دسـعودي عربسـتان لـه حکومت او چارواکو سره به هغه راشه درشه ونلري کومه چې دامريکـا دپخوانيـو ولسمشرـانو درلـوده ، ټرمـپ دخپلـې ولسمشرـۍ دټـاکنيز کمپـاين پـه مهـال ويـل: کـه دسـعودي عربستان ځواکونه ورسره دداعش ځپلو پـه جنـګ عمـلي ونـه وانخلي دی به له سعودي عربستان څخه دتيلو پيرل بند کړي

## ايران:

دايران په باب هم شايد د ټرمپ پاليسي داوباما دورې په نسبت تغير وکړي دټرمپ په نظر پـه ايـران دې شـته بنديزونـه نـورهم سـخت اوټينـګ کـړای شي ځکـه دده پـه انـد ايـران دتروريزم ترټولو ملاتړی هېواد دی.

## چين:

ترڈې مهاله ترمپ دچين پرضد توندې نيـوکې کړيـدي پـه خاصه توګه دچين کرنسې دټيټ ارزښت ستونزې په اړه زيـات اندېښمن دی څه موده مخکـې يـې وويـل: چـې چـين دخپلـې کرنسې دکم ارزښت په مټ دامريکا معنوي پانګـه لوټـوي دی به په دې موخه خامخـا جـدي ګامونـه واخـلي. هـم دا راز يـې ويلي: چې په چين باندې دغلبې لپاره اړتيـاده چـې امريکـا پـه اسيا کې خپل پوځي شتون نورهم پياوړي او پراخ کړي.

## روسيه:

دچين په پرتله ټرمپ دروسـې پـه اړه يوڅـه محتـاط دی هغه روسې سره يوځای دايـتلاف جوړولـو غوښـتونکی دی او هڅه به وکړي چې دروسيې سره اړيکې نورمال حالت ته بوځي بل پلو دروسيې ولسمش پوتين هم غـواړي څوټرمـپ دخپلـو موخو لپاره استعمال کړي او ګرجستان پـه سر دروسـيې او او غرب ترمنځ شته ناندريو دپای ته رسولو هڅه به وکړي.

## افغانستان:

ترډې مهاله دافغانستان په اړه دټرمپ پاليسې نده ښکاره، چې هغـه بـه راتلـونکي کـې دافغانسـتان پـه بـاب کـوم نـوی سياست غوره کوي او که داوباما لخوا غوره شوی سياست دی هم انتخابوي له دې وجې دکابل د لاسپوڅي رژيم په تنـه کـې دسترې رواني ورخطايې او انديښنو نښې ليـدل کېـږي هغـوی دټرمپ اوږدې چوپتيا انديښمن کړيدي خو دټـاکنو څخـه څـو کالـه وړانـدې چـې ټرمـپ دافغانسـتان دقضـيې پـه اړه کمـه علاقمندي لري په خاصـه توګـه دامريکـايې ځواکونـو تلفـات شايد احساساتي کړي او له امله يې احساساتي ګامونه واخلي چې دا به که خدای کول دامريکا ښکېلاک لپاره هغسي بـدنام حشر وي لکه دشوروي اتحـاد لپـاره دګوربـاچوپ احساسـاتي پريکړې چې دشوروي اتحاد په پاشل کيدو منتجې شـوې هـم داسې بـه دټرمـپ فيصـلې دګوربـاچوپ يـاد ژونـدی کـړي او امريکا به دپاشل کېدو په لور رهي کړي .

# آيا د کندوز د فاجعې عاملان به مجازات کړای شي؟

شاهد(غزنیوال)

د لړم د میاشتې په ۱۳ نیټه امریکایي یرغلگرو د کابل رژیم په غوښتنه د کندوز ولایت په بُزکند هاري سیمو کې تر ۳۲ تنه زیات ولسي- وگړي چې ډیری ښځې او ماشومان و په ډیر وحشیانه ډول شهیدان کړای شول.

په یادې فاجعې کې د ۳۲ تنو ولسي- وگړو وژل کیدل خپله د کندوز ولایت والي و د هغه ویاند په جلا جلا ډول له رسنیو سره په خپلو ځرگندونو کې تائید او اعلان کړل.

وروسته د کندوز ولسي- وگړو ، قومي مشرانو او متنفذینو د پیښې د قربانیانو جسدونه د یوه پراخ لاریون په ترځ کې د کندوز ښار ته را انتقال او هلته یي د مجرمینو د مجازات کولو په غرض تر څو ساعتونو پوري د ولایت مخته د اعتراض په توگه ایښي وو.

که څه هم چې د کابل رژیم د دفاع وزارت ویاند دولت وزیري په ډیرې سپین سترگي سره امریکایانو ته د یاد جنایت د ترسره کولو له امله د برائت ورکولو هڅه وکړه ، خو هغه داسې جنایت و چې خپله د کابل رژیم هغه چارواکي چې په افغانستان کې د امریکایي اشغال تر ټول کلک مؤییدین دي هم د بشري جنایتونه په جمله کې شمیرلی او د عاملینو د مجازات غوښتنه یې کړې.

صبغت الله مجددي چې له امریکایي اشغالگرو سره د امنیتي تړون تر ټولو سر سخت پلوی او د یاد تړون د لاسلیکولو د مراسمو بانفوذه شاهد و په خپل هغه اعتراضیه لیک کې چې رسنیو ته یي استولی ویلي چې پر کندوزي ولسي وگړو د امریکایانو بمباري دا جوتوي چې هغه د افغان ولس پر وړاندې یوه ظالمانه دسیسه ده او نړۍ یې باید پر وړاندې چوپتیا غوره نه کړي .

مجددي په خپل لیک کې د ملگرو ملتونو له امنیت شورا څخه غوښتي چې د کندوز د دردونکې پیښې هراړخیزه څیړنه وکړي او پر وړاندې یې باید د جنگي جرمونو په نړیواله محکمه کې غبرگون وښودل شي.

نوموړي په خپل لیک کې دا هم ویلي چې دا څوم ځل دی چې ناټو او امریکایي ځواکونه د تېروتنو په بهانه د پرمختللې ټکنالوجۍ او امکاناتو له شتون سره سره د هېواد په بېلابېلو ځایونوکې بېوزله خلک په نښه کوي .

یواځې مجددي نه ، بلکې د رژیم د ولسي او سنا جرگو غړیو هم د امریکایانو له لوري د کندوز د معصومو ولسي- وگړو وژنه بشري جنایت بللی او د جنگي جرمونو له محکمې څخه یې د دغه جنایت د مرتکبینو د مجازات غوښتنه کړې.

خو اوس خبره داده چې څوک به د کندوز او په افغانستان کې د نورو سلگونو دغه ډول جنایتونو عاملین امریکایان مجازات کړي؟

د امریکایانو دا لومړی ځل نه دی چې د خپلو دوو تنو امریکایي سرتیرو د وژل کیدو په عوض کې یې ۳۲ تنه ولسي- وگړي مړه او تر ۵۰ تنه زیات ژوبل کړل.

همدې امریکایانو تیرکال په همدې شپو ورځو کې د ټولو بشري قوانینو خلاف د بي سرحده ډاکټرانو روغتون بمبار کړ چې له امله یي ۴۳ تنه د روغتون طبي عمله او ناروغان ووژل شول.

سره له دې چې د بي سرحده ډاکټرانو نړیوال سازمان په کندوز کې د امریکایانو له لوري د هغوی پر روغتون تر سره شوي برید جنگي جنایت وباله او ټولو اړونده جهتونو ته یې په دې اړه اسناد او مدارک هم وړاندې کړل ، خو امریکایي چارواکو یواځې د بښنې په غوښتلو سره خپل ځان له هرډول قضايي تعقیب څخه وژغورو.

اوس هم چې د کندوز د فاجعي قربانیان، عیني شاهدان ، دولتي چاراکي او نور بي پري افغان او نړیوال شخصیتونه د کندوز غمیزه بشري جنایت بولي او د عاملینو د جزا غوښتنه یې کوي جنرال نیکلسون خپل مسؤلیت یواځې د پیښې په اړه د خواشیني په ښکاره کولو سره پوره بولي.

امریکایان چې له یوې خوا ځان په نړۍ کې د عدالت الگو معرفي کوي ، له بلې خوا بیا ځان تر هرقانون لوړ بولي او په تیرو ۱۵ کلونو کې چې د دوي په لاس په زرگونو افغانان په عمدي ډول وژل شوي تر اوسه یي یو امریکایي قاتل هم د زرگونو افغانانو د وژنې د جرم په مقابل کې پراعدام نه دي محکوم شوي .

دا ځل هم هیڅ فکر نه کیږي چې هغوی دې په کندوز کې د ترسره کړي جنایت په جرم محکوم شي ، بلکې د دوی تر محکومیت وړاندې یې د دولت وزیري په څیر بي مروته مدافعین د برائت کولو کوښښ کوي .

خون ناحق دست ازدامان قاتل بر نداشت
دیده باشي لکه های دامن قصاب را

#اسـد افغـــان

# د جهاد له مقدمو کرښو

## یادښتونه، خاطرې او د سترګو لیدلی حال

**یادونه : درنـو لوسـتونکو! لکـه څنګه چې خبر یاست همـدا اوس د هیواد په لراوبر کې د کفري طاغوت او د هغـوی د ګوډاګیـانو پـه خـلاف جهادي مبارزه پـه ټـول قـوت روانـه ده.د جهاد معرکـو یـوه د یـادونې وړ سـیمه د هلمنـد ولایـت دی چـې مجاهـدینو پـه کـې سـر کـال ډیـر فتوحـات درلـودلي دي. د اسـلامي امـارت د فرهنګـي کمیسـیون یـو ځانګړی خبري او مطبوعاتي ټیم د هلمنـد پـه وروسـتیو معرکـو کـې د مجاهدینو سره مل وو چې جهـادي پرمختګونو ته یې ژونـدی خبري او ویډیویي پوښښ ورکاوو. دلته درته د همـدې مطبوعـاتي ټـولګي د یـوه ګـډونوال اسـد افغـان خـاطرې او یادښتونه وړاندې کوو چې د هلمند جهـادي ډګـر د سـترګو لیـدلی حـال بیانوي.**

### د مجاهدینو سلطه

په مطبوعاتو کې ویل کیږي چې د هلمنـد ولایـت ۹۰ فیصـده خـاوره د مجاهدینو په واک کې ده مګر واقعیت دادی چې مجاهدین د هلمند له ۹۵ فیصده هم په زیاته خاوره حاکمیت او سلطه لري.موږ د هلمند په لراوبر کې وګرځیدو،حکومت یوازې په مرکز لښکرګاه او د څو اولسوالیو په مرکزونو واک لري، د لښکرګاه مربـوط هـم ډیـرې سیمې لکـه بولان،چاه انجیـر او د بابـاجي خـوا مجاهدینو فتحه کړې دي د مارجې او نـادعلي لخـوا جنګـي خـط د احمـدولي پـه چـارراهي باندې دی چې د ښار یوه برخه ده.ولسوالی اکـثره مکملـې فتحـه دي او پـه څـو کـې چـې عسکر د یوې قرارګـاه واک لـري پـه محـاصره شکل شپې تیـروي. محصـورو عسـکرو تـه خوراکي مواد د هوا له لارې راځي او الوتکې یې په پراشوټ کې غورځوي،عام عسکر اکثره دې ته میلان لري چې تسلیم شي، مګر حکومت یې په سر د استخباراتو یا سپیشل فـورس کسان مقرر کړي د هغوی له ډاره نه شي تسلیمدلی، کوم عسکر چې د تیښتـه لاره بـه یـې پیدا کړې وه او مجاهدینو ته به راغی ډیر بد وضعیت به یې بیاناوو، ویل به یـې چـې دولتـي عسکرو په بشپړ ډول د جنګ روحیه بایللې ده، د مجاهدینو سختو حملـو او د حکومـت بـې پروایي چې حتی ډوډۍ او مرمۍ هم ورته نه رسوي او زخمیان یا وژل شوي کسان یـې پـه هفتو هفتو په قرارګاوو کې پراته وي،نو څکه عسکر نور نـه غـواړي او نـه کـولای شي چـې مقاومت وکړي.

### د مجاهدینو قوت

په هلمند کې مجاهدین په هر لحاظ په ښه حالت کې و. عسکري نظم یـې ډیـر برابـر و، والي صاحب ویل چې له ۱۸ زره زیات بالفعله مسلح مجاهدین لرو چې ټول تـر واحـده او قومنده لاندې دي یوه ورځ چې د لښکرګاه په مربوطاتو کـې اضـافي مجاهـدینو تـه ضرورت شو په کم وخت کې تر زرو زیات مسلح او مجهز مجاهدین له شمالي هلمند څه راورسـیدل او په عملیاتو کې یې برخه واخیسته والي صاحب به د هر جنګ لپاره یو مسؤل تعین کـړ او بیا به که د هرې سیمې یا هرې ډلګی مجاهد و هماغه یوه امیر ته بـه مسؤل و.پـه خاصـو عملیاتو کې د فدایانو قطعې برخه اخیسته، اتیا فیصده مجاهدین پـه هغـو پرمختللیـو وسـلو سمبال وو چې په دې وروستیو کې یې له امریکایانو یا داخلي عسکرو نه پـه غنیمـت نیـولي دي.دوی په لیزري او د شپې د لید په دروبین لرونکو ټوپکو سمبال وو چې په عملیـاتو کـې یې ښه مؤثریت ښودلی و،دغه راز په لسګونو امریکـایي پـوځي مـوټر لکـه هـاموي او همـر

ټانګونه د مجاهدینو په لاس کې وو چې په عملیاتو کې یې فعاله ګټه ترې پورته کوله. مجاهدین د اطاعت ، دیانت، نظم، دسپلین ، تاکتیک او مورال له اړخه په بشپړ ډول اماده او په ښه حالت کې وو. له نویو او بدلیدونکو تاکتیکونو څخه یې استفاده کوله، په دښمن به یې له داسې اړخه او په داسې تاکتیک برید کاوو چې دښمن به یې تمه او پیش بیني نه درلوده. له بلې خوا داولس ملاتړ هم په بشپړه توګه له مجاهدینو سره وو او بالمقابل مجاهدینو هم په هر ډول جنګي او عادي حالاتو کې له اولس سره داسې ښه ګوزاره کول چې هیچا هم ترې د ویرې او بیزارۍ احساس نه کاوو.

## د خلکو وضعیت

د مجاهدینو تر واک لاندې مفتوحه ساحو کې امنیتي وضعیت بشپړ د ډاډ وړ او پوره اطمینان موجود و ، موږ لیدل چې خلکو به د شپې په لارو او کلیو کې رفت آمد درلود، دوکانونه او بازارګوټي به تر نیمې شپې خلاص ول، د غلا، بې امنیتي یا فساد هیڅ ویره او اثار نه و پاتې،مجاهدینو هم له خلکو سره ډیر ښه چلند کاوو، موږ ولیدل چې په ځینو ځایونو کې هغه مجاهدین نیول شوي او بندیان شوي وو چې د خلکو د ځور لامل ګرځیدلي و یا یې ورسره غیر اصولي چلند کړی وو.

دمجاهدینو ساحات دومره مطمئن و چې اوس له لښکرګاه څخه کډې راوتلې او د مجاهدینو ساحې ته راتلې،په سیمه کې دحکومتي چارواکو ډیری کورونه لا هم په خپل ځای و یوازې چارواکي تنها تښتیدلي وو قریبان او د کورنۍ غړو یې په پوره اطمینان د مجاهدینو په ساحه کې ژوند کاوو او مجاهدینو هم پرې هیڅ غرض نه درلود.

په اولسي ساحاتو کې مکاتب، کلینکونه اونور خدمات چې پخوا فعال وو اوس یې هم منظم فعالیت درلود.د هلمند په شمالي ولسوالیو لکه سنګین، موسی کلا او کجکي کې خو د خلکو لپاره د بریښنا ۲۴ ساعته سهولت هم موجود و چې اسلامي امارت د یوې ځانګړې اداري له لارې دغه خدمات عرضه کول او اولس ترې استفاده کوله.

مجاهدینو ټول احتیاط کاوو چې د جګړې په ترڅ کې عامه تاسیساتو لکه روغتون، سرک، پول،د اوبو بند او داسې نور عام المنفعه زیربناوو ته زیان ونه رسیږي که په کومه سیمه کې به د جګړې په ترڅ کې ورته زیان رسیدلی و مجاهدینو کوښښ کاوو چې د خپل وس سره سم هر څومره ژر یې د بیارغونې کار ترسره کړي.

د لښکرګاه مربوط د باباجي د مامور رافع په سیمه کې چې د سختې جګړې له امله لارې او ځینو پلونو ته زیان ورسید د هلمند والي صاحب دوه ورځې بعدد سیمې مسؤل مؤظف کړ چې زرترزره دلارې د بیا جوړولو کار ترسره کړي.موږ ولیدل چې په سبا هغه مجاهدین چې پخوا یې ټوپکونه درلودل اوس یې بیلچې په اوږه وې او دولسي۔ اشر په همکارۍ یې د لارې او پلچکونو د جوړولو کار ترسره کاوو.

## د مجاهدینو اخلاص او دیانت

د فتوحاتو په وخت کې طبعا د خلکو تر منځ د مال او غنیمت شوق زیاتیږي چې له امله یې د لوټ تالان او غلول پیښې زیاتیږي او د الله تعالی د نارضایت سبب ګرځي چې له امله یې ډیر ځله الهي نصرت او فتوحات هم ختمیږي.

خو په هلمند کې سره له دې چې مجاهدینو ډیر فتوحات کړي وو ډیر امکانات ، وسلې او غنایم یې نیولې وو مګر بیا هم د غلول او په غنیمت د جنجال کوم حوادث موږ نه دي لیدلي. امارت د غنیمتونو لپاره ښه ترتیب جوړ و ، عام المنفعه امکانات او وسائل ټول د بیت المال حق او عام شتمني بلل کیدله نه د غنیمت مال. مجاهدینو ته یوازې سپکه وسله او سپک جنګي ابزار د غنیمت په حیث په اصولي طریقه تقسیمیدل، ټانګونه او درنې وسلې د عمومي جهادي بیت المال ملکیت وو. له هرې فتحې وروسته د ځانګړي ګروپ لخوا د والي صاحب په امر ټول غنائم ثبت او قیمت کیدل، خمس یې د بیت المال و او نور په عادلانه توګه په شاملو مجاهدینو تقسیمیدل چې د موږ د مشاهداتو له مخې مجاهدینو هم د غنیمت په پیسو بیرته د ځان لپاره وسلې، دوربینونه او مرمۍ رانیولې او په دې توګه ټول غنائم بیرته

په جهادي لار کې مصرف کيدل او په جهاد کې د کوم مادي هوس څرک نه ترسترگو کيدلو.

د ناوې ولسوالی پـه فتحـه کـې يوه مجاهـد تـه د کـوم عسکر چـانتې خوند ورکـړی و او بيـا مشر- تـه راغـی چې ماته دغـې چـانتې خونـد راکـړی. پنځه سوه روپۍ قيمت لري زه بـه يـې اوس درکړم ځکه په غنيمت کې شـايد پـه لاس رانشي-. خـو مشر- جيـب تـه لاس کـړل مجاهـد تـه يـې زر روپـې ونيـولې چـې تـه اوس دغـه واخلـه او چانتـه د غنيمـت مـال تـه وسـپاره لـه تقسـيم وروسـته يـې پـه دغـو روپيـو راونيسه ځکه که يو ځـل دا رواج جـوړ شي بيا به هر سړی د خپل هـوس پـه مبنا له غنيمت ځان ته مال او وسـائل اخلي.

په مجاهدينو کـې اطاعـت خـورا زيات وو او همدغه يې د بريـا راز هـم بلل کيدو، که د مشر لخوا به ورته امر وشـو نـو پـه سره اور هـم ورگډيـدل او ځان يې نه سپماوو، هيڅکلـه يـې لـه جگړې څخه دمشر له وينا پرتـه عقب نشيني نه کوله. په نـاوه کـې يـوه ورځ مـوږ غوښـتل چـې ددښـمن د پوسـتو عکـاسي وکـړو، د مجاهـدينو محـلي مشر يوه مجاهد تـه امـر وکـړ چـې لـه موږ سره لاړ شي تـر څـو راتـه پوسـتې وښيي او رهنمايي مو وکـړي، تـر هغـه ځايه دوه ساعته مزل و او دغه مجاهد يو څه زخمي هم وو زموږ ملگري ورته وويل چې تاسو ډير په تکليف ياست او بيرته به وگرځو خو هغه مجاهد ټينگار کاوو چې ماته امر شوی دی او بيرته په هيڅ صورت نه گـرځم تـردې چې په ډير تکليف يې هغه مسؤليت سرته ورساوو.

## ددښمن ذلت بار حالت

دښمن خو له اکثرو سيمو شړل شوی خوپه کومو سيمو کې يې چې يـوه نيمـه قرارگـاه پاته وه او گڼ شمير د پوستو عسکر په کې راټول شوي وو ټولو يې پـه ډيـرو سـختو حـالاتو کې گوزاره کوله. لکه په رسنيو کې چې ددښمن د اردو، پوليسو او اربکيانو شـکايتونه راغلـل چې دوی وچ غنم يانيني خوري او همدې ژوندي پاتـه دي. د ټپيـانو زخمونـو يـې بويونـه او چينجي کړي دي ځکه چې محاصره دي او رسيدگي ورته نه کيږي دا بالکل يو واقعيت دی نه يوازې په هلمند بلکې پـه روزگـان، کنـدهار، او ډيـرو نـورو ولايتونـو کـې ددښـمن ټـولې اطرافي قرارگاوې همداسې محاصره دي. په روزگان کې ديوې قرارگـاه عسـکرو يـو مسـلح مجاهد ونيو خو چې کله مجاهدينو ورسره رابطه وکـړه نـو هغـوی وويـل چـې دوه بـوجۍاوړه راوړئ موږ به مجاهد در پريږدو چې بالاخره همداسې وشول او هغه مجاهد يې په دوو بوجيو اوړو باندې ددښمن له لاسه خلاص کړ چې له دې خوراکي موادو ته ددوی عاجله اړتيا ډيره ښه ثابتيږي.

په ډيرو سيمو کې دښمن په همداسې حالت کې دی چې پرته له تسليمی يا له لوږې د مرگ څخه پرته بله لار نلري. دوی شايد تر څـه وختـه پـه هغـو غنمـو او خـوراکي ذخيـرو گوزاره وکـړي چـې لـه پخـوا ورتـه پـاتې ده مگـر آخـر بـه ضرور تسـليميږي. ځکـه دوی تـه امريکايان اکمالات نه کوي او داخـلي حکومـت کـه يـې د طيـارو لـه لارې کـوي د هغـوی طيارې دومره پرمختللې نـه دي چـې پـه دقيـق ډول هـرې قرارگـاه تـه اکـمالات ورسـوي. همداتازه په رسنيو کې خبر دی چې په ډيرو سيمو کې حکومتي الوتک پـه غلطـۍ وسـلې او مهمات د خپلو کلابندو عسکرو په ځای مجاهدينو ته ښکته کړي دي.

نو بناء لکه څومره چې په دې ولاياتو کې د مجاهدينو حالت د ډاډ او خوښـۍ وړ و پـه همدې کچه دښمن په سخت او خورا ذلت بار حالـت کـې وو چـې نـه خـو يـې ورتـه بـادرانو امريکايانو هيڅ نوعه توجه کوله او نه هم داخلي حکومت او لوړپوړو مشـرانو يـې شـکايتونه اوريدل.

زياتره عام عسکر په دې هڅه کې وو چې له پوستو وتښتي او مجاهدينو ته تسليم شي خو دښمن يې مخه نيوله او ددې لپاره يې ورته مختلف موانع ايجاد کړي وو.

پـه افغانسـتان او اسـلامـي نړۍ

# د امریکا د ولسمشریزو ټاکنو اغیز

احمد مختار لیکوال او سیاسي شنونکی

د ۲۰۱۶کال د نومبر د میاشتې اتمه نیټه د امریکا د ولسمشریزو ټول ټاکنو تاریخي ورځ ده.

دا ورځ چې له ۲۳۰ ملیون واجد شرائط رایه ورکوونکو امریکایانو څخه به ۱۵۰ ملیونه د خپل ۴۵ نمبر ولسمشر د ټاکنو په پروسه کې ګډون کوي د امریکا د نورو ولسمشریزو ټاکنو په پرتله ډیره مهمه او په عین حال کې له نااندریو ډکه ورځ ده.

په یادو ټولټاکنو کې د امریکا د څلورو سیاسي ګوندونو کاندیدان ګډون لري خو د هغوی له جملې څخه د جمهوري غوښتنکو ( the Republican Party) او دیموکراتانو ( Democratic Party) د دوو کاندیدانو ډونلډ ټرمپ او هیلري کلینټن ترمنځ ګرمه سیالي روانه ده چې امریکایي ولس له یوه څخه هم د نورو امریکایي ولسمشرانو په نسبت ښې هیلې نه لري.

د جمهوریت غوښتونکي ګوند کاندید ډونلد ټرمپ چې یو سترپانګوال او مشهورمیلیونر دی ترخپلې کاندید توري وړاندې یې یو لړ داسې څرګندونې کړې چې د امریکایي ټولنې له غوښتونو سره په ټکر کې دي.

نوموړي د خپلو انتخاباتي کمپاینونو په مهال ویل که دی ولسمشر شي نو امریکا ته به د مسلمانانو پر راتګ ممنوعیت ولګوي او په امریکا کې د میشتو مسلمانانو مسجدونه هم بند کړي

د ډونلد ټرمپ د ټاکنیزو کمپاینونو پرمهال چې سږکال د امریکا په پلوریدا ایالت کې د همجنس ګرایانو په یوه کلب د افغاني الاصله عمر متین لخوا خونړی برید وشو او له امله یې ۴۹ تنه مړه او ۵۳ تنه نور ژوبل شول ډونلډ ټرمپ هغه ورځ په خپلې ټویټر پاڼې ولیکل : ماته د۵۲ امریکایي همجنس ګرایانو وژنې ټکان راکړی ، د دې خونړي برید تر سره کوونکی هم مسلمان دی او ماته مبارکي راکړئ چې زه امریکا ته د مسلمانانو د راتګ سرسخت مخالف یم.

خو د امریکا په د ننه کې ډیر امریکایان بیا د ټرمپ له دغو غوښتنوسره توافق نه لري ، ان تر دې چې د امریکا د فلوریدا ایالت د سان پټرزبورګ ښاروال دغه ښار ته د ډونلد ټرمپ په ورتګ بندیز ولګاوه او د مسلمانانو په خلاف یې د نوموړي د پاروونکو څرګندونو په مقابل کې خپل شدید غبرګون ښکاره کړ.

همدا راز امریکایي ولسمشربارک او باما د مسلمانانو په خلاف د ډونلډ ټرمپ څرګندونې اخلاقي اشتباه وګڼله او نوموړی یې د امریکا د ولسمشرۍ لپاره یو نامناسب شخص وباله .

د امریکا د دفاع وزارت هم د اسلام او مسلمانانو په خلاف د ټرمپ څرګندونې نامناسبې او په نړۍ کې د داعش د ځواکمن کیدو لامل وبللې.

خو یوشمیر نورامریکایان په تیره د ټرمپ پلویان بیا د دیموکراتیک ګوند په کاندیدې هیلري کلنټن دا نیوکې لري چې هغې د متحده ایالاتو د بهرنیو چارو وزارت په مهال داسې تصرفات کړي چې د متحده ایالاتو له مصالحو سره په ټکر کې دي ، نوموړې د وزارت په مهال خپل شخصي ایمیل کارولی او په کال ۲۰۱۲ کې د لیبیا په بن غازي ښار کې د امریکې د سفیر د وژل کیدو په قضیه کې پړه بلل شوې.

په افغانستان د امریکایي ټولټاکنو اغیز

پـه افغانسـتان کـې د امریکایـانو پوځي ښکیلتیا یا پـه بـل عبـارت دلتـه د امریکا تر ټولو اوږده جګړه د دې لامل شوې چې له افغانستان سره د امریکـایي سیاست والو دلچسپي کمه شي.

په درې واړو منـاظرو کـې چـې د هیلري کلینټن او ډونلډ ټرمـپ تـرمنځ د انتخابـاتي کمپـاینونو پـه مهـال تـر سره شوې یوه هـم د افغانسـتان پـه اړه خپلـه راتلونکې تګلاره نه ده اعلان کړې او نه هم په دې اړه ترې پوښتنه شوې .

پـه داسـې حـال کـې چـې پـه کال ۲۰۰۹ کې د امریکا په ولسمشریزو ټاکنو کې د انتخاباتي کاندیـدانو( بـارک اوبامـا او جـان مکـین) تـر ټولـو مهمـه خـبره د افغانسـتان موضـوع او حتـی د بارک اوباما د بریـالیتوب لامـل هـم لـه افغانستان څخه د امریکـایي پوځیـانو د بیرته ورغوښتلو ژمنه وه.

خو د ۲۰۱۶ کال په ټاکنو کې بیا د دواړو انتخابـاتي نومانـدانو (هیلـري او ټرمپ) دلچسپي له افغانستان سره دومره کمه شوې چې لیږ تر لیـږه د افغانسـتان نوم هم په ټاکنیزو مناظرو کې نه اخلي.

ډونالـــد ټرمـــپ د امریکـــا د ولسمشرۍ لپاره د خپلې کاندیدتورۍ پـه مهــال ویــلي و چــې افغانســتان تــه د امریکایي پوځیانو لیږنه یـوه اشـتباه وه چې د وخت ولسمشر جورج ډبلیو بوش وکړه .

اوس لا تر وخت وړاندې خبره ده چې په افغانستان باندې د امریکایي ټولټاکنو د اغیز پـه اړه نظر ورکړل شي ، خو په مجموع کې به ښایي سپینه ماڼۍ نورهغه اهتمام افغانستان تـه ورنـه کړي کوم چې د جورج ډبلیو بوش او بارک اوباما په وخت کې ورته ورکول کیده.

په امریکا کې د دې هیواد د داخلي او خـارجي سیاسـت پـه اړه اصـلي پالیسۍ او تګـلاره د امریکا د ګانګریس له لوري ټاکل کیـږي نـه د ولسمشرۍ لـه لـوري ، اوس مهـال پـه عـام ډول د امریکایي سیاست والو په منځ کې د افغانستان له قضیې سره دلچسپي کمه شوې، ځکه دلته نه د امریکایانو پوځي تګلاره اغیزمنه ثابته شوه او نه هم د هغوي سیاسي تګلاره.

ګډ حکومت چې په افغانستان کې د امریکایي پوځي او سیاسي تګلارې مشترک محصول دی په تیرو دوونیمو کلونو کې هیڅ بریا نه ده لرلې او نه تر دې وروسته ترې د پرمختـګ هیلـه کیدای شي.

پر اسلامي نړۍ د یادو ټولټاکنو اغیز

د بارک او باما په ولسمشرۍ کې په اسلامي په تیره عربي نړۍ کې یوزیات شـمیر تغیـرات راغلل.

په عربي نړۍ کې د بهار عرب په نوم پاڅونونو پیل شول چـې غیـر مسـتقیم د امریکایـانو ملاتړ او مرسته ورسره کیده .

د بهارعرب د پاڅونونو لړۍ چې له تونس څخه پیل شوه د تونس د زین العابدین ، د مصرـ د حسني مبارک ، د یمن د عبدالله صالح او د لیبیا د ډګـروال قـذافي حکومتونـه یـو پـه بـل پسې ونړول ، په سوریه کې د بشار الاسد لخوا د پاڅون کوونکو پوځي مقابله وشوه چې پـه تـدریج سره هغه هم په کورنۍ جګړې بدله شوه ، په مصر کې د ډاکټر محمد مرسي په مشرۍ منتخب حکومت د امریکایانو په تحریک د پوځي دیکتاتور جنرال عبدالفتاح السیسي لخـوا ړنـګ او منتخب ولسمشر یې لومړی په اعدام او بیا په عمري قید محکوم کړ.

په یمن کې د حوثي باغیانو او د منصورهادي د پلویانو ترمنځ کورنۍ جګړه پیل شوه.

د عراق جګړې په دغه هیواد کې د داعش په راپیدا کیدو سره نور ابعاد خپل کړل .

دا او دیته ورتـه نـور ډیـر تحـولات د بـارک او بامـا د واکمنـۍ پـه مهـال او د نومـوړي د حکومت په دستور په اسلامي نړي کې منځته راغلل.

دا چې امریکایان د اسـلامي نـړۍ پـه کچـه پـه ډیـرو لانجـو کـې لاس لـري او هغـوی د مسلمانانو لپاره د لانجو راپیداکول د خپل سیاست برخه بولي نو خامخا به د امریکایي انتخابـاتو په ترڅ کې د نوي امریکایي ولسمشر په راتلو سره د عربي نړۍ په اړونده قضایاوو کې هم تغیـر راځي ، دا چې دا تغیر به منفي او که مثبت وي په اړه به یې وروسته حکم کیدلای شي.

اوس چې د بارک اوباما د حکومت په ختمیدو سره په منځني ختیځ کې امریکایي مصالح هم تر ډیره متحقق شوي ښایي د امریکا د نوي ولسمشر پـه راتلـو سره د منځنـي ختـیځ پـه اړه د امریکا پالیسي تغیر وخوري او هلته شته نا امنیو او جګړو ته د پام ټکی کینبودل شي.

# ژیړه ډبه

**قاري حبيب**





ژیړه ډبه  چې ځینې ورته بوشکه هم وایي. ظاهرا یو معمولي او کم ارزښته شی معلومیږي مگر په حقیقت کې خورا ارزښتمن شی ثابت شوی چې زموږ د اولس خصوصا مجاهدینو خورا ډېر حوائج ورباندې رفع کیږي.

ژیړې ډبې چې کوچني، متوسط او لوی سایزونه لري اصلا د خرڅیدونکو غوړیو لپاره د ظرف په حیث جوړیږي او استعمالیږي.اما لکه څرنگه چې په نورو هیوادونو کې د غوړیو له ختمیدو وروسته خلک له ژیړې ډبې سره نور کار نلري او کباړ ته یې غورځوي په افغانستان کې داسې نه ده. دلته د ژیړو ډبو له مختلفو سایزونو څخه بیلابیل کارونه اخیستل کیږي.

مثلا ماشومان  په ژیړو ډبو کې کور ته اوبه راوړي.کلیوال ترې سرونه غوځ کړي او بیا د اوداسه د کوزو په حیث ترېنه استفاده کوي.د اضطرار په حالاتو کې د شړومبې جوړولو او غړکې کار هم ورکوي. ځینې خلک په سفر یا حضر کې د اوبه سړوونکي پتک یا فریج کار هم ترې اخلي هغه دا چې په ژیړه ډبه د سنیو بوجۍ تاو کړي اوبه ورباندې تویې کړي او له اوبو ډکه یې ډبه هوا ته کیږدي چې ورسره د ډبې اوبه هم سړې شي او په گرمي کې ترې استفاده کیږي.

خو د ژیړې ډبې یاد شوي ټولې گټې او خواص اصلي نه بلکې فرعي دي.ددې ډبې تر ټولو ستره کارنامه یا شهکار دادی چې په جهادي مجال کې یې خورا ستر اونه هیریدونکی نقش اداء کړی دی.

که د روسانو خلاف جهاد کې د افغان تش لاسي اولس لومړنۍ مؤثره وسله هغه د تیزابو ډک بوتلونه وو چې ځانگړي محلول نه به یې ډکول او بیا به یې روسي ټانگونه ورباندې ویشتل نو په اوسني جهاد کې د مجاهدینو تر ټولو مؤثره وسله همدا ژیړې ډبې دي چې د امریکا هر ماډل ټانگ او هر ورې جنگي تاکتیک ته یې د الله تعالی په مرسته شکست ورکړ.

امریکایانو چې په افغانستان یرغل کاوو نو د خپلو ژورو مطالعاتو او معلوماتو له مخې په دې پوهیدل چې طالبان کومې وسلې لري او دوی به په کوم ډول وسلو هدف گرځول کیږي.امریکایانو ددې په خاطر چې د مجاهدینو له گوزارونو ځان خوندي وساتي له پیله یې افغانستان ته داسې پوځي او ناپوځي موټر راوستل چې د مجاهدین د سپکو وسلو او حتی ټانگ ضد راکټ لانچرو په وړاندې یې مقاومت درلود.

د خارجيانو همر او هاموي شوبلې دغه راز نور مرمۍ ضد موټر يې چې دوی ترې په ښارونو کې استفاده کوي تقريبا ټول يې د کلاشينکوف، پيکا او نورو عادي مرميو په وړاندې مقاومت لري.په دغو امريکايي پوځي وسايطو د مجاهدينو راکټ لانچر ځکه ډېر مؤثر نه و چې ددې ټانګونو په ځينو کې د اور ضد مواد کاريدلي چې په اسانه اور نه اخلي او يا يې په شاوخوا داسې جال لرونکې زغره راګرځول شوې چې د راکټ مرمۍ په هوا کې نيسي تردې چې د راکټ مرمۍ سرګلوله په ټانګ نه لګيږي چې انفجار وکړي.

د يرغل له پيل څخه د امريکا په ټانګونو د وسلې د مؤثريت کموالي مجاهدين دې ته متوجه کړل چې بايدپه بديلو لارو غور وکړي. له مجاهدينو سره نه خو د کوم بل هيواد مرسته وه چې پرمختللې وسلې ورکړي او نه يې هم په دې محکومه نړۍ کې له کوم هيواد څخه داسې تمه کولای شوای. نو ځکه مجاهدينو په خپل ابتکار د اغيزناکو وسلو پيدا کولو ته توجه وکړه او د نصرت او مرستې اميد يې يوازې تر الله تعالی پورې محدود وباله.

الله تعالی ددې آيت په مصداق چې فرمايي: والذين جاهدوا فينا لنهدينهم سبلنا... مجاهدينو ته يې د امريکا مرمۍ ضد ټانګونو د ماتولو وسله د ژيړې ډبې په شکل کې وښوده. د مجاهدينو پام شو چې که د خپل لاس جوړ کړي باروت په يوه يا څو ژيړو ډبو کې تخته کړي او بيا يې امريکايي ټانګ ته کيږدي په کومک دالله تعالی سره په دې ناچيزه ژيړه ډبه کې دومره ځواک شته دی چې د امريکا درانه ټانګونه د ځمکې له مخ څخه پورته، په هوا کې ريز مريز او بيا يې د سپرو عسکرو له خرڅوړو او کباړ سره يوځای پړمخې پرځمکه رانسکور کړي.

بس نو دمجاهدينو دې تاکتيک ته ورپام شو. مجاهدينو د ژيړو ډبو د تيارولو او ډکولو لپاره ځانګړي ګروپونه وګمارل،د تخنيکي زده کړو لپاره يې لنډ مهالي او اوږدمهالي کورسونه دائر شول، د انفجاري موادو د تقويې لپاره نوي نوې فارمولې کشف او وکارول شوې تردې چې بالاخره اسلامي امارت د ژيړو ډبو ( انفجاري موادو) د تهيه کولو لپاره دنظامي کميسون دننه يوه مستقله حلقه او اداره جوړه کړه چې هره مياشت يې د هيواد په لراوبر کې په زرګونو ژيړې ډبې د جهاد لپاره تيارولې او مجاهدينو په امريکايي ټانګونو او پياده عسکرو باندې ور چاودولې.

امريکايي يرغلګر چې د همر او هاموي په شان سپک ټانګونه دغه راز رينجر او مرمۍ ضد موټر يې د ژيړو ډبو په وړاندې سخت ناکام وختل تردې چې هغه تر ټولو کوچنۍ ژيړې ډبې هم کولای شوای سلامت رينجر د هوا څپو ته پورته کړي.نو يې د ژيړو ډبو له اذيت څخه دخونديتوب لپاره په نوو پوځي لارو چارو غور پيل کړ.

په ۲۰۰۶ ميلادي بيا تر ۲۰۱۰ ميلادي پورې د امريکا د وسله سازۍ او پوځي ساينس په اکاډميو او تحقيقاتي مراکزو کې اکثره بحثونه د افغانستان په ژيړو ډبو راڅول ول. د امريکا پوځي تخنيکي ماهرينو د نړۍ د هر پوځ د متعارفو وسلو د مخنيوي لپاره وسائل تيار کړي ول. هغوی د روسي ميګ او سوخو الوتکو لپاره ستينګر ميزايل جوړ کړي ول.د روسي سکډ ميزايلو دفاع ته يې د پيټرياټ سيستم طراحي کړی و حتی چې د هر ملک د پوځ د هرډول وسلې دفاع ته

يې چمتوالی او وسائل درلودل مگر په افغانستان کې دوی د ژیرې ډبې په نوم له داسې وسلې سره مخامخ وو چې دوی یې هیڅ اټکل نه و کړی.

د ژیرې ډبې له گوزار څخه د مخنیوي لپاره امریکایانو بیلابیلې طرحې په کار واچولې. یو ځل یې داسې ټانگونه راوستل چې د ځمکې له مخه ډیر لوړ او سینه یې په مخروطي شکل جوړه وه، ترڅو د ژیرې ډبې د انفجارو او د بارودو فشار د ټانگ یوه او بل اړخ ته ووځي او ټانگ پورته نه کړي. مگر مجاهدینو ددوی دې غټو ټانگوته د یوې په ځای دیرې ډبې خښولې او ټانگ په هر صورت مجبوریدو چې له ځمکې پورته شي.

بیا یې د مخې گاډۍ لرونکي ټانگونه راوستل تر څو ژیره ډبه په هغه ورخلاصه او ټانگ ترې محفوظ شي. مجاهدینو دا هنر وکړ چې ډبه به یې له تلکې څو گامه شاته ښخوله چې بیا به که د ټانگ مخکینۍ گاډۍ په تلکه وختله هم ډبه به د ټانگ لاندې پټاو کیدله.لنډه دا چې په دې برخه کې د امریکایي پوځي ساینس ټولې طرحې ناکامې وختلې تردې چې امریکایانو په وروستیو کې هلمند ته د ابرامز په نوم شپیته ټنه درانه چین داره ټانگونه هم راوستل تر څو که په ژیره ډبه یې زور بر شي مگر ژیرې ډبې ویل چې په ما چې څومره بوج او وزن زیات وي همدومره ښه خوردن کوم.د ابرامز د ټانکیسانو غوښې د هلمند او کونړ د سیند کبانو وخورې او د ټانگ ټوټې یې د کباړ په بازارونو کې لیلام ته وړاندې شوې.

د جهاد په تیرو څو کلونو کې د هیواد په لراوبر کې د ژیرې ډبې او امریکایي دجالي پوځي تخنیک تر منځ ځواکمنه جگړه روانه وه. ژیره ډبه که له یوې خوا د امریکا د پوځ او تخنیکي مراجعو د بحث او سرگردانۍ زړې جوړاوو له بلې خوا به یې کله ناکله په غربي مطبوعاتو کې هم نوم یادیدو. په ۲۰۱۱ میلادي کال کې یو شمیر امریکایي رسنیو ولیکل چې د افغانستان د جگړې تر ټولو فاجعه بار اړخ دادی چې د امریکایي پوځ زیاتره زخمي شویو عسکرو د طالبانو د خودساخته ماینونو د انفجاراتو له امله خپل مخصوص جنسي- اندامونه له لاسه ورکړي چې له دې امله ورته د درست عمر رواني مرضونه پیدا شوي دي. دغه راز په زرگونو وژل شویو امریکایانو سربیره د هغو امریکایانو شمیر تر لسگونو زرو رسیدو چې د ژیرو ډبو په انفجاراتو کې یې پښې، لاسونه او یا نور اعضاء له لاسه ورکړي وو. غربي مطبوعات زموږ ژیرو ډبو ته په انگلیسي- ژبه د (Water Container IED) اصطلاح کاروي چې معنی یې ده د ( اوبو له ډبې جوړشوی بم) که څوک غواړي معلومه کړي ژیرو ډبو کفارو ته څومره زیان اړولی همدغه اصطلاح دې گوگل کړي ترڅو د ژیرو ډبو له کمالاتو او تاثیراتو خبر شي.

د ژیرو ډبو درنو چاودنو بالاخره په کبر راغلي یرغلگر دې ته مجبور کړل چې د جگړې له میدانه پښې سپکې کړي. ژیرو ډبو نه یوازې د ۴۹ هیوادونو لسگونه یرغلگر عسکر په ځان پورې حیران کړل بلکې د هغوی داخلي یې له جگړو او غلامۍ څخه پښیمانه کړل.

ژیرې ډبې د خپل مؤثریت او استعمال له امله په ولسي جهادي شعر او ادب کې هم انعکاس پیدا کړ. لکه په تیرو کلونو کې چې داسې ټپې وویل شوې.

فضا ته لار د ختو نشته
زه يرغلگر په ډبه سپور ورخيږمه

ژيړو ډبو يرغلگر دومره وويرول چې په وروستيو کلونو کې به يې ددې ډبې په ليدلو سمدستي د جنگ دانه اخيسته او د ځان ددفاع هڅه به يې کوله. د مجاهدينو له قوله په هلمند کې ډير ځايه داسې پيښ شوي چې کوم کليوال د اوداسه لپاره له ژيړې ډبې سره له کوره راوتلی خو په محل کې موجودو امريکايي عسکرو ويشتلی او شهيد کړی دی خو چې کله يې له امريکايانو د علت پوښتنه شوې دوی ويلي چې موږ فکر کاوو دغه سړي بم په لاس کې را اخيستی دی.

د چريکي جگړو په ځير په اوسنيو سترو تهاجمي عملياتو کې هم مجاهدين له ژيړو ډبو اعظمي استفاده کوي. له يوه مجاهد نه مې وپوښتل چې په هلمند کې مجاهدين ددښمن پوستې او قرارگاوې څرنگه فتحه کوي؟ هغه وويل مجاهدين په دريو برخو ويشل شوي وي، يوه برخه د د هاوان، ايس پي جي ناين او نورو درنو اسلحو والا وي چې له نسبتا لرې فاصلې څخه ددشمن مورچې او برجونه په درنو وسلو ولي او بله ډله نښه ويشتونکي او يا د شپې دوربين لرونکي وي چې هغوی په هدفي او رسا گوزارونو ددښمن هر ښکاره کيدونکی شخص په دقت په نښه کوي. بل ځانگړی گروپ د ژيړو ډبو والا مجاهدين وي له دوی سره کوچنی او لويې بارودي ډبې وي او کوښښ کوي د پوستې يا قرارگاه ديوالونو ته ځان ورسوي. دوی درنې ډبې د قرارگاه ديوالونو ته رډي او بيا انفجار ورکوي ترڅو تعرضيانو ته د داخليدو مخه خلاصه شي. دغه راز دوی سپکې ډبې د قرارگاه مابين ته د گرنيټ په شکل وراړوي چې په انفجار سره ددښمن افرادو ته دروند زيان او تخريب اړوي.

د جهادي سيمو کمکي هلکان او ماشومې نجونې بيا له ژيړو ډبو د ماشومانه لوبو لپاره استفاده کوي. دوی که له يوې له دې ډبو د دريا يا چمبې په حيث کار اخلي کله داسې هم شوي چې د کلي شوخو کمکيانو ددې ډبو په واسطه په امريکايانو ډرامه جوړه کړې وي.

هغه داسې چې په کومه دښته يا خامه لار باندې امريکايان را روان وي ماشومانو ورته په مخکې خالي ډبې ښخې کړې او ځيني ځای ښکاره کړي وي ترڅو يې امريکايان ووينې. امريکايي کاروان د تشو ډبو په ليدلو توقف کوي. خپل د تخنيک ماهرين راغواړي، هغوی په ځانگړو وسايلو په ډير احتياط ژيړو ډبو ته ورنږدې کيږي خو وروسته له ساعتونو ځنډ او پلټنې ښکاره کيږي چې تشې ډبې په لار کې ايښودل شوي دي چې دغه ډرامه د کلي شوخکانو ته يوه په زړه پورې او خندوونکې سرگرمي جوړوي.

په هر حال ژيړه ډبه د افغان مجاهد اولس دخپل لاس جوړ هغه وسله ده چې د امريکايانو هر ډول تکنالوژي يې راوپرځوله. د افغانانو د خپل لاس جوړه وسله يې ځکه بولو چې د ډبې انفجاري مواد خپله مجاهدين جوړوي او د هلمندغونډې په ډيرى ازادو سيمو کې اوس د پلاستيکي مصنوعاتو کارخانې هم فعالي دي چې د پلاستيکي پايزار، لوښو اوظرفونو تر څنگ دهرسايز ژيړه ډبه هم جوړولی شي.

# دامریکا نــوی مشر (ډونــلډ ټرمپ) به افغانستان ته څه پیغام ولري!!

(هڅاند)

تـراوږده ټاکنیزکمپـاین څخـه وروسته دادی دجمهوریت پال گوند نومانـد کاندیـد (ډونلـډ ټرمـپ) د (هیلرۍ کلنټن) په مقابل کې بریالی اودامریکـــا (۴۵)ولسمشرشـــو، دتحلیلگرانـو دآنـدونواو وړانـدوینو خـلاف ناڅاپـه د (ټرمـپ) د گټلـو امکـان هغـه وخـت زیـات شـو ،چې دامریکا د( اوهایو، فلوریدا او شمالي کارولاینا) په څېر یې په اوښـتونکو ایـالتونو کـې ډېـرې رایـې و گټلـې. د(ټرمــپ )ســیالې هیلــرۍ کلنــټن )دمگرۍ خپله مـاتې ومنلـه او خپـل سـیال (ټرمـپ) تـه یـې دکامیابیـدو مبارکې وویله ،(ټرمپ )ترټاکل کیدو وروسـته امریکایانوتـه خطـاب کـې وویل : چې زمـا لپـاره داخـبره مهمـه ده، چــې وواېــم ،چــې زه دټولــو امریکایـــانو ولسمــــشر یـــم..... نړیوالوسره به دښو اړیکو پـر بنسـټ دامریکا دگټوساتنه کوم.......

دامریکا انتخابات کـه څـه هـم داددې هیـواد اوولس خپلـه داخـلي مســئله ده او دافغانســـتان دروان حالت او افغـان ولس سره کـوم ډول اړیکـه نلـري ، خـوداچې نـن یـې دافغانستان په گڼون زیاتو اسـلامي هیوادونوکې پوځونه دیره دي او فعلا دافغانســتان ســهامي حکومـت هـم ددوئ دنوښت په نتیجـه کـې دواک گدی باندې کښینول شوی ، نو ځکه ددې هیـواد ټـاکنیزبهیر خـارل اود (ټرمپ )ټاکل دنورو خلکـو پـه څـیر دیوشمیر افغانانو ځـانگړی پـام هـم ځانته اړولی او دافغانستان سره یې ددې جهته تړاو پیدا کړی .

د(ټرمپ) تر بریا وروسته دکابل چارواکیو ورته مبـارکې خوداسلامي مشرانو ورته توصیې وکړې اوددې نه یې خبرکړ،چې دافغانستان جگړه ددوئ په گټه نه، بلکې پـه زیـان ده ،نوخپـل پوځونـه دې ددې هیـواده وبـاسي . ددې ټاکنودنتـایجو تـر اعـلان وروســته پـه کابـل کـې د امریکا سفیروویل : د ترمپ بـری بـه له افغانستان سره د امریکا پر اړیکو اغېز ونه کړي .

(ســفیر مایکـل مـک کیـنلي )وویل: له افغانسـتان سره د امریکـا اړیکې د انتخاباتو او یا په امریکا کې د مشرتابه د بدلون پر اساس نـه دي تنظیم شوي.

ده همــداراز وویــل چــې لــه افغانسـتان سره د مرسـتې پـه اړه د امریکا اوږدمهاله ژمنه د سږ کـال د بروکسل په غونډه کې تمدید شوه.

خــو یوشـــمیرتحلیلگران بیـــا دامریکـا پـه نـوي ولسمشر۔ بدگمانـه دي او فکرکـــوي ،چـــې دامریکـــا پالیسي۔ بــه نــور دزور پــه منطــق اســـتواره شي ، د نړیوالـــو چـــارو کارپوهــان وایــي: د ډونالــډ ټرمــپ واک ته رسېدل ،په دې معنـی دي، چې امریکایان بـه لـه دې وروسـته د خپلو پلانونو په عمـلي کېـدو کـې د

نرم سیاست نه کم، خو له زوره به ډېره استفاده وکړي، پر سیاست به یې دټوپک ،باروتواوزور رنګ غالب وي .

اګرکه د (ټرمپ ) کامیابي به دافغانستان په هکله دامریکاپر دیپلوماسۍ کوم ژور اغیز ونه ښندي او لکه څنګه چې معلومیږي ،دپنټاګون اوسنۍ پالیسۍ به ترنفاذ لاندې ونیسي، خو په مجموع کې دمسلمانانوسره دده وارله مخه دکرکې اعلان ،چې په خبره یې مسلمانان به نور امریکاته نه پرېږدي اودا په همدې خبره دټاکنیزکمپاین پر وخت دجمهوریت پالو تر نیوکو لاندې هم راغی، هغه څه دي، چې دیوې نوې بشري تراژیدۍ نه غمازي کوي ،داسې معلومیږي چې دا به مخصوصا دامریکادمسلمانانوپه خلاف زوراو زیاتي نه ډېره نه کوي اودده په عقیده مسلمانان ددټولو مسایلو سرچینه ده .

نوموړي چې دخپلې ټاکنیزې پالیسۍ داعلان پر وخت دافغانستان په اړه کومه کومه تبصره هم ونکړه، نو یاخوداچې د تیر حکومت لاسته راوړنې یې کافي بللې او دافغانستان فعلي وضعیت ورته قانع کوونکی ښکاري او یا داچې (ټرمپ )نور نه غواړي، چې دافغانستان په کشاله کې دخپلو نورو مشرانو (بش او اوباما)غوندې ځان ښکیل کړي ،شاید نوموړې پتیيلې وي، چې نور خپل پوځونه او متحدین لدې هیواده وباسي ،که نه امریکایانو په افغانستان کې ۱۵ کلن پوځي حضور لرلی ، دلته یې د افغان حکومت په ملاتړ کې تر (۲۴۰۰) زیات پوځیان وژل شوي ، شا وخوا یو تریلیون (زرملیارده) ډالره یې مالي لګښت شوی ، له کابل سره یې استراتیژیک تړون لاسلیک کړی او لا هم دلته په زرګونه پوځیان لري، خو د دې هرڅه سربیره بیا د افغانستان نوم دامریکاپه ټولټاکنو په بشپړه توګه له پامه غورځول شوی اوددوئ دکمپاین برخه دا ځل نشو.

دترکیې دواکمن (رجب طیب اردګان )پر خلاف د(فتح الله ګولن)په رهنمایي دناکامي پوځي کودتاه په ورځو کې مې رسنیو سره د(ټرمپ ) خبرې واوریدې ،چې دترکیې دصدراعظم (طیب اردغان) ننګه یې وکړه او دده فتحه یې وستایله،نوراته هغه وخت داسې وبریښیده، چې داسې که څه هم رسنیو کې دامریکا دمسلمانانو خلاف ځرګندونې کوي، خو داسې ښکاري ،چې په مجموع کې به دده ټاکنه مسلمانانوته یو ښه زیری له ځانه ولري ،ګوندې دامریکادساتنې په فکر خپل عسکرله اسلامي خاورې وباسي او مسلمانان خپل برخلیک ته پرېږدي .

دوختونو عبور او مرور به ثابته کړي، چې دامریکا نوی مشر افغانستان ته دخوښۍ کوم پیغام لري، آیا غواړي نور دې ولس ته دخپلې آزادۍ حق ورکړي او که نه دخپل سلف په شان نور هم ورسره دزور په منطق خبرې کوي ،خو حدسونه او آندونه داسې دي، چې دا به نور دافغانستان معضلې ته دپای ټکی کیږدي اوخپل پوځونه به له هیواده وباسي !



# دشمن از چه هراس دارد؟

قاضي ، عبيد

در این اواخر حکومت اجیر کابل با حمایت مستقیم آمریکا در تلاش اند تا از یک سو جلو سقوط حکومت ناتوان و از هم پاشیده خود را بگیرند و از سوی دیگر تا اندازه بتوانند مقاومت در برابر فتوحات و پیشروی های چشمگیر مجاهدین نمایند ، بیخبر از اینکه دیگر عساکر شان تاب و توان جنگ را نداشته و روحیه خود را کاملا از دست داده ، زیرا جنگ و مقابله با انگیزه خاص برای یک هدف خاص میتواند کامیاب باشد در حالیکه حکومت دست نشانده کابل برای ادامه جنگ هیچ کدام هدفی جز دفاع از منافع غرب و آمریکا در افغانستان نداشته ، با اندکی مقابله یا تسلیم میشوند و یا هم از میدانهای جنگ فرار مینمایند.

سقوط دوباره قندز ، فرار دشمن از میدان های جنگ در هلمند ،ارزگان بغلان ... ناکامی دوستم و متحمل شدن خسارات مال و جانی او در شمال کشور ، بمباران افراد ملکی و بیگناه به نام های تروریست و دهشت افگن توسط نیرو های اشغالگر ، استعفای اراکین بلند پایه اشرف غنی ، رشوت ،خیانت ، فساد گسترده و حتی فاصله گرفتن ملت از نظام تحمیلی و مزدور جان کیری را میتوان از نمونه های عمده ضعف و ناتوانی حکومت کابل و سقوط آن دانست .

و همچنان فتحوحات اخیر امارت اسلامی که باعث گردیده تا سنگرهای جهاد و مبارزه علیه اشغالگران و نوکران شان از کوهای کنر ، بدخشان ،پکتیکا و دشت های هلمند ،زابل هرات به نصرت پروردگار ، عزم راسخ و ایمان قوی مجاهدین تا دروازه های ورودی کابل برسد.

یگانه چیزی که آمریکا و اداره کابل را در مخاطره انداخته تسلیمی عساکر با تجهیزات ووسائل در دست داشته شان میباشد و حتی در بسیاری ساحات ما شاهد هستیم زمانیکه آمریکا از سقوط پوسته و قرارگاه بدست طالبان و یا رابطه عساکر با مجاهدین شک مې ورزند فورا پوسته متذکره را بمبار نموده و تمام عساکر آنرا را به قتل میرسانند که بمباران پوسته های امنیتی را در داخل شهر ارزگان ، قندز و بسیاری از نقاط کشور میتوان یاد آور شد .

با آنکه آمریکا و شرکای جنگی وی تاب و توان جنگ رویاروی با مجاهدین را نداشته و خود را در بیس ها و پایگاه های که دورادور آن را پوسته های امنیتی، دیوار های سمنتی با نصب کمره ها مخفی و چک پوست ها محافظت مینماید مخفی نموده اند ولی بار ها در داخل همین پایگاه های شان مورد حملات قوی مجاهدین قرار گرفته که حمله اخیر استشهادی در داخل بزرگترین پایگاه نظامی بگرام که باعث از بین رفتن ده ها عسکر آمریکایی گردید را میتوان نامبرد ، جای که حتی خود آمریکایی ها بدون اجازه ، ارتباط مستقیم و تلاشی کامل داخل شده نمیتواند .

آمریکا میخواهد تا خود را از معرکه دور نموده تنها همکاری هوایی با عساکر اجیر نماید و آن هم نه بخاطر اینکه ضرورت عساکر آمریکایی در پهلوی عساکر اجیر محسوس نمیگردد بل بخاطر اینکه عساکر و جوانان خود را نمیخواهد قربانی جنگ ناکام در افغانستان نماید . امریکا اراده دارد تا با مصارف هنگفت پول و مهیا نمودن تجهیزات مختلف نظامی عساکر و جوانان جاهل و خود فروخته افغان را در برابر مجاهدین قرار داده و این جنگ را تا مدت زمانی گرم نگهدارد ، ولی لله الحمد کامیابی ها و فتوحات امارت اسلامی و نیز شکست پی هم و متواتر دشمن در میدان های نبرد که منجر به کشته و زخمی شدن و یا هم فرار و تسلیمی شان میگردد آمریکا را با ناکامی در جنگ افغانستان مواجه نموده و در صدد چارهای برای بیرون شدن از این گرداب میباشد.



م محمدگل سعید

# زمونږ جهـاد په عقیـده ولاړ دی

د تاریخ په اوږدو کې چې کله هم زمونږ د هیواد سپیڅلې خاورې ته استعمارچیانوپه سپک نظـرکتلي دي اویـایي د افغانـانو پـر خـاوره د پښـو ټینګولـو زیارپـه کارراوسـتلی دی،نـو د همـدې خـاورې بچیـانو اومبـارزینو دخپلـې خـاورې دتقـدس سـاتلوپه خیال اوداستعماردپست او نابود کولوپه هڅه، په لوړهمت ،عالي شان او استقامت سره هغه ګذارونه ورکړي دي، چې تـاریخ بـه تـل وربانديې ویاړ کوي .

په واقعیت سره هم دغه خبره ده چې له هغې خواهرراتلونکی غاصـب کـه د طهماسـپ اوصـفوي پـه شـکل کې،اوکـه دمغـل اوانګریزپه شکل کې وي، چې کله یي هم په خیرنوسترګومونږته راکتلي دي .

نودا ارمان یي ، چې دافغانانوپرتمینه خاوره اشغال کړي هریوه له ځانه سره ګورتـه وړی دی او دوی دې دخپلوپرونیوتـاریخ نـه هیروي اویاددې لري چې افغان ولس نن هم دپرون په څیرد آسیا په زړه کې د زړه کردار لوبوي .

دغربي ښکیلاک په ضدزمونږ دمسلمان او میړني ولس قیام اووسله واله مبارزه ،چې ددې لـړۍ یـوه کـړۍ ده،یـوازې اویـوازې داسلامي عقیدې په اساس ولاړه ده، او د همدې عقیدې اوایمان په قوت یـې دلـوی خونخواردښـمن پـه ورانـدې دجهاداوآزاوچیغـه پورته کړې ده.

ددې قیام اوسپیڅلي جهاد اصلي محرک همدااسلامي عقیده اوپرلوی خدای جلاله ټینګ ایـمان تشـکیلوي .دهمـدې عقیـدې اوایمان ولوله اوجذبه ده چې دمجاهدینوپه زړه کې له مرګ ،زندان دکورونواومالونوله لوټ اوتاراج څخـه څـه ویـره ونـه ګرځیدلـه . همدااسلامي عقیده ده چې خاوندانویي شهادت اوقرباني ته په خوشحالي اوموسکاخپله غیږه پرانیستله اوهمدا ایمان ؤچې لـه مـادي پلوه یوه کمزوري ولس ته یی داتوان ورپه برخه کړچې دوسائلواواسبابودنشتوالی اوکمښت سره سره غربي یرغلګروتـه کلـک اوخولـه ماتوونکي ګذارونه ورکړي .

دمادي وسایلو او د غښتلې حربي ټیکنالوجي په وړاندې دعقیدې پیاوړتیا او بریالیتوب عملاځلکوته وښودله چې نن عصر کـې د اسلامي امارت مجاهدینو د امریکا په څیر متمرد دښمن ته چې ځان د ځمکې پر سر د زمـانې فرعـون بـولي دومـره مـالي اوځـاني زیانونه وروارړول ، چې عقل یی منلو ته هیڅکله نه چمتو کیږي.



دوی خوداسـلامي امـارت هغـه مبـارز مجاهـدين د بشريت له دائرې نه خارج کړي ؤاودځمکې لـه مـخ نـه يـې دورکيدلوګوابښ ورته کړی ؤ،خولله الحمـد نـن هغـه کفـري نړی په دې اعتراف کوي چې طالبانو امريکا او ناټو له ماتې سرمخ کړي دي .(الفضل ماشهدبه الاعداء).

دا که دعقيدې خبره نه وای نودابه کوم ناپوهه وي چې دومره زحمتونو اوستونزوته به غاړه کيږدي اوله خپل ژوندڅخه به تېرشي.دادعقيدې اوايمان ولوله ده چې زمـونږميړني ولـس تـه يـې داتوان وربښلی دی چې له خپل ځان اومال څخه تېريږي اوخپله پاکه وينه په دې پاکه لاره کې تويوي.

زمونږميړني مجاهدين ګڼ شمير هليکوپترونه، ټانګونه،زندانونه ، وژونکي اوزهرجن ګازونه او........ دسرپه سـترګووينې چـې دحربيانولخواپه ډيره بې رحمی او قساوت سره په کليواودروکې ترې کاراخيستل کيږي،خوزمونږولس ته خپلې کلکې عقيدې اوټينګ ايمان داسې زور،استقامت او پراخه حوصله وربښلې ده چې داګردمشکلات اوستونزې په ځان منـې اوخپلـې سـپيڅلې مبـارزې تـه دوام ورکوي .

ددغودلائلوسره سره سپيڅلي اسلامي جهادته بله بڼه اونوم ورکول په حقيقت کـې لـه لمرڅخـه انکـاردی . دوی مسـلمانان پـه دې نه زنداني کوي اووژ ني چې دوی يوه اوبل ملت ياقوم ته منسوب اوياپه يوه اوبله ژبه خبرې کوي،بلکه په دې ګناه يـې زنـداني کوي اووژني يې چې دوی پرخدای ټينګه عقيده لري اوله خپلې مقدسې مبارزې څخه نه اوړي .

غربيانوله پخوانه داسلام اومسلمانانوخلاف خپل وحشيانه پلانونه عملي کړي دي ،چې په عراق اوافغانستان باندې نظامي يرغل ددې لړۍ يوه کړۍ ده ،اوپه دې لاره کې دوی خپلې شيطاني مفکورې په کاراچوي ،ترڅوچې مسلمانان له خپلې سـپيڅلې عقيـدې اوټينګ عزم څخه واړوي .

ښايي داخبره سمه وي چې دوی په افغانستان باندې دنظامي يرغل اوتيري لاملـه غـواړي چـې منځنـی اسـياته ځـان ورسـوي اودسيمې له شتمنيوڅخه ګټه پورته کړي ،خوحقيقت داده چې په افغانستان کې ورځ په ورځ دمجاهدينولخوااسلامي مبارزه پرمختګ کوي،ګړی په ګـړی داسـلام دلښکريانواومبارزانودشـميربهيرمخ پـه زياتيـدودی ، اولـه افغانسـتان څخـه داسـلام ديوپاخـه اوټينـګ سنګرجوړيدل مخ په وړاندې روان دی .

غربي يرغلګرودهمدې سنګرله وېرې په افغانستان نظامي يرغل وکړ اوزيات شميرطالبان اومجاهدين يـې شـهيدان کـړل ،چـې ددوی دظلمونواووحشـتونولړۍ اوس هـم لاروانـه ده. خـوان شـاءالله د اسـلامي امـارت سرتيـري مجاهـدين بـه زرتـرزره ددوی دظلمونوانتقام واخلي ،دوی ته به يي دنيکونوتاريخ ورتازه کړي ،اودکړيدلي اوزوريدلي ولس زړونه به پرې يخ کړي .

دتېرپه څېرداسلامي امارت له جوړيدوسره :ازآدي، سعادت،سوکالي او هر اړخيز ټولنيز عدالت ملګری او ترلی دی ،چې بيلګې يي په هغو مفتوحه سيمو کې له ورايه ښکاري ، چېرته چې داسلامي امارت مجاهدين واکمن او ځواکمن دي .

# د جنګي ډلو تولید

## د جګړې د دوامدارکولو

## خطرناک تکتیک

**لیکوال: عبدالرحیم (ثاقب)**

د خبري رسنيو د رپوټ پر اساس د ملګرو ملتونو کار پوهان وايي چې له ۳۵۰۰۰ تر ۴۵۰۰۰ پورې بهرني جنګيالي په افغانستان کې شتون لري.

د يادو کار پوهانو په وينا دغه جنګيالي چې د القاعدې او داعش په شمول په لسو نورو په اصطلاح تروريستي ډولو پورې تړاو لري ځيني يې له طالبانو سره په پوځي او امنيتي چارو کې مرسته کوي.

د ملګرو ملتونو د کار پوهانو د دغو څرګندونو په شمول نورو ډيرو تبليغاتي ډنډورو هغه وخت زور واخيست چې کله د اګست ، سپتمبراو روان اکتوبر په مياشت کې دامريکايي او داخلي ځواکونو په خلاف د طالبانو پوځي فعاليتونو زور واخيست.

د طالبانو له لوري د کندوز لاندې کول ، د هلمند، فراه ، اوروزګان ، بغلان او ځينو نورو مهمو ولايتونو محاصره کول ، او په يادو ولايتونو کې په سلګونو دولتي عسکر طالبانو ته تسليميدل د دې لامل شول چې کابل رژيم او د هغوی امريکايي ملاتړې په نظامي او پوځي لحاظ تر فشار لاندې راشي.

دا چې د رژيم امنيتي او پوځي ځواکونه او هم د هغوي امريکايي حاميان په پوځي لحاظ د طالبانو د پوځي فعاليتونو د پرمختګ مخه نشي نيولای نو له تبليغاتي لحاظه کوښښ کوي چې د غربي ميډيا او په امريکايي منظومې پورې تړليو مؤسسو (ملګروملتونو، يوناما، د بشري حقونو مؤسسې) په وسيله د طالبانو په خلاف تبليغاتي پروپاګنډه توده وساتي.

د کابل رژيم او د هغوي اجنبي حاميانو د طالبانو خلاف تبليغاتي ډنډوره د طالبانو په منځ کې د داخلي اختلافاتو له شائعې څخه پيل کړه ، کله چې د طالبانو په منځ کې په عملي لحاظ د دغې شائعې د مصداقيت څه نښې نښانې ونه ليدل شوې ، بيايې د طالبانو له لوري د رژيم له ځينو افرادو سره د مذاکراتو هنګامه توده کړه ، کله چې هغه هم په تېنګه د طالبانو لخوا رد شوه اوس يې د ملګرو ملتونو په وسيله په افغانستان کې د ۴۵۰۰۰ زره بهرنيو جنګيالو د شتون پروپاګنډه پيل کړې.

هغوی د دغو ناموجهو تبليغاتو له لارې کوښښ کوي نړيوالو ته دا وښيي چې په افغانستان کې د دوي په خلاف روان مقاومت يو ملي او افغاني مقاومت نه ؛ بلکې د دوي په اصطلاح بهرني تروريستان دي چې په افغانستان کې د تمرکز له لارې هم د افغانستان په داخل او هم له هغه نه بهر امريکايي مصالح وګواښي.

### له امريکايانو يوه پوښتنه

څوک نسته چې له امريکايي ډنډور چيانو څخه دا وپوښتي چې که واقعا هم ستاسي دا تبلغات ريښتيا او په افغانستان کې ۴۵۰۰۰ بهرني جنګيالي موجود وي نو په افغانستان کې ستاسي ۱۵ کلن پوځي او استخباراتي ماموريت د څه لپاره و ؟

ایا تاسو چې د بېګناه ولسي-افغانانو په کورونو کلسټر او نور سوځوونکي بمونه اورول هغه د دې لپاره و چې دلته ستاسي په اصطلاح بهرني جنګیاله له منځه یوسئ او که د دې لپاره چې هغه نورهم په لسګونو زره تولید کړئ؟

تاسو خو د بګرام ، ګونتنامو، پلچرخي او نور په لسګونو سري زندانونه همدا ستاسي په اصطلاح د بهرنیو تروریستان د له منځه وړلو لپاره جوړ کړل، د همدې غرض لپاره مو تر یولک او پنځوس زره زیات بهرني پوځیان افغانستان ته راوستل او ...

ستاسي د خپلو احصائیو له مخې ستاسي په پنځلس کلن اشغال کې تر یولک زیات افغانان وژل شوي ایا تاسو د هغوی د وژلو عملیات د دې لپاره تر سره کړل چې دلته په اصطلاح د بهرنیو تروریستانو د فعالیت مخه ونیسئ او که د دې لپاره چې هغوي نور هم په لسګونو زره اضافه کړئ ؟

ایا ستاسي په اعتراف چې په افغانستان کې خواوشا ۵۰۰۰ بهرني سرتیري مړه او په سلګونو زره نور ټپیان او یا په نفسیاتي ناروغیو اخته شول دهغوي محصول دا شو چې په افغانستان کې د ۴۰۰۰ بهرنیو جنګیالیو شمیر ۴۵۰۰۰ زرو ته ارتقاء وکړي؟

**د جنګي ډلو تولید د جګړې د دوامدارکولو خطرناک تکتیک**

د افغانستان په شمول په ټولو هغو هیوادونو کې چې تر امریکایي اشغال لاندې دي ، امریکایان د خپل اشغال د دوام لپاره هلته د جنګي ډلو د تولید کوښښ کوي ، په عراق باندې د امریکایي اشغال په مهال امریکایانو هلته له امریکایي اشغال سره د مقابلې په پلمه د عراقي اصلي مقاومینو ترڅنګ په سلګونو وسله والې جنګې ډلې راپیدا کړې ، هغوی یې تمویل کړې او بیا یې د هغوي په وسیله په یاد هیواد کې کورنۍ جګړه تو ده وساتله .

همداراز په لیبیا کې د امریکایانو او ناټو له لوري د ډګروال قذافي د حکومت تر ړنګیدو وروسته د امریکایانو په دستور هلته سلګونه جنګي ډلې جوړې او بیا یو د بل پر خلاف په جګړه شوې چې تر اوسه روانې او په لسګونوزره لیبیایان ورکې مړه او ژوبل شول.

یرغلګر امریکایان غواړي اوس په افغانستان کې هم د کورنۍ جګړې د پیلولو او دوام لپاره دلته د داعش ، اربکیو، پاڅونوالو، مرګ ټیمونو او ... په نوم سلګونه خپل سري جنګي ډلې ایجاد کړي او بیا د هغوي ترمنځ د داخلي جګړو له لارې په افغانستان کې خپل ملوث شتون او اشغال ته د دوام پلمه پیدا کړي.

**خلاصه**

په افغانستان کې د امریکایانو له لوري د ۴۵۰۰۰ بهرنیو جنګیالیو د شتون ادعاء د هغوي د اشغال د دوام او دلته د نیابتي جګړې د غزولو اصلي هڅه ده .

خو هغوی باید په دې خبره سر خلاص کړي چې افغانستان عراق ، لیبیا، یمن او صومال نه ده چې جهادي قیادت یې د لسګونو جهتونو له لوري رهبري کیږي ، دلته الحمدلله د ټولو یرغلګرو او دهغوي د ملاتړو په خلاف جهادي مقاومت د اسلامي امارت تر یوې مسلطې قوماندې لاندې پرمخ بیول کیږي.

تاسو که هر څومره د خپل تبلیغاتي ماشین په زریعه دلته د جنګي ډلو د تولید خبره تبلیغ کړئ ، خو اسلامي امارت د دې توان لري چې هم ستاسي د یرغلګرو ځواکونو او هم د داعش او اربکیو په شمول ستاسي د ماشیني جنګي ډلو د تکثر مخه ډب او د خپل مشروع دفاعي جهاد په وسیله ټول هیواد ستاسي د کفري اشغال له سیوري آزاد کړي . ان شاء الله



# دشهید اهـل و عیال سره

## څنګه سـلوک کول لازم دي

**مفتي سعید**

دمقدس دین سرتېر وغازیانواوداسلام دپاکې مینې معـززو شهیدانو له اهل وعیال سره په مسلمانانوباندې دشفقت اورأفت نه ډک درحم اوخوشحالي سلوک اوپاملرنه لازمي ده اوبایـدهیڅ کله یوفرددمسلمانانودغې کـم بختـي اودهلاکـت لارې تـه ځـان مختـه نه کړي چې دشهیدبې وزله اهل وعیـال غمجنویتیمانوتـه څـه قسـم تکلیفونـه ،صـدمې اوخفګـان ورسـوي اودافکرخوپـه هرمسـلمان لازم دی چـې شـهیدالله تعـالی پـه لارکـې ،دالله تعالی درضالپاره دمقدس اسلام دحفاظت پـه خاطرلـه شیرین سراومال،اهـل وعیـال څخـه تېرشـو.دده اهـل وعیـال دده لـه سیوري بې برخې شول نوآیادده اهل وعیال ته تکلیـف رسـول بـه الله تعالی جل جلاله دناراضي سبب ونه ګرځي؟

امـام ابوداودرحمـه الله پـه خپـل سـنن کـې ددې موضوع متعلـق مسـتقل بـاب پـه عنـوان د (بـاب فـی حرمـة نسـاء المجاهدین) وضع کـړی اوداحـدیث یـې روایـت کـړی دی :عـن بریـدة قـال قـال رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم حرمـة نسـاء المجاهدین علـی القاعـدین کحرمـة امهاتهم ومامن رجـل مـن القاعدین یخلف رجـلا مـن المجاهـدین فـی اهلـه فیخونـه فـیهم الاوقـف لـه یـوم القیامـة فیأخـذمن عملـه ماشاء فماظـنکم.رواه مسـلم مشـکوة ج۲ ص ۳۵۱ ابـوداودج ۱ ص ۳۴۵ والنسـایي واحمدفی المسند .

ژباړه: نبی کریم صـلی الله علیـه وسـلم ارشـادفرمایي :چـې حرمت دښځودمجاهدینوپه قاعـدینو(یعنې پـه هغـه چاچې پـه کورونوکې ناست دي جهادته نه دي لاړ)داسې دی لکـه حرمـت دمینـدوددوی اونشـته هـیڅ داسـې څـوک چـې نایـب شي دمجاهد(یعني دمجاهـدد اهـل وعیـال حفاظـت او اصلاح ورپـه غاړه شي) او بیا هغه د مجاهدلـه اهـل سره خیانـت وکـړي مګـر دقیامـت پـه ورځ بـه داخـاین دمجاهدپـه مـخ کـې ودرولـی شي اومجاهدبه ددغـه خاین داعمالونـه څـومره یـې چې خوښـه وي واخلي نوڅه دی ګمان ستاسو .

حضـرت امـام محمـدبن احمدالسرخسيـ رحمـه الله ددې حدیث په تشریح کې لیکلي دي :ثم انما استحق هذاالوعیـدلان المجاهـدخرج مـن بیتـه وجعـل اهلـه امنـة عنـد القاعـد وعندالله فاذاخان فی اهله فقدخان فی امنة الله وانـه سـعی الـی قطـع الجهـاد لان المجاهـد اذا علـم ان غیـره یخونـه فـی اهلـه لایخـرج.......الخ .(شرح کتـاب السیرالکبیرللسرخسـی ج ۱ ص ۱۷ فضیلت الرباط)

دمجاهــداهل سره خیانــت کــونکی ددومــره لــوی وعیدمستحق وګرځیده داځکه چې مجاهدله خپل کوراهل څخه په داسې حال کې لاړچې خپل اهل یې امانـت وګرځـاوه لـه پـاتې ناسـتوخلکوسره اولـه الله تعـالی سره نوکلـه چـې داپـاتې خلـک دمجاهدله اهل سره خیانت وکـړي اوحفاظـت یـې ونکـړي نـوبې شکه چې دوی دالله تعالی په امانت کې خیانت وکړ .

(نعوذ باالله) او بل داچې داخیانـت کـونکي دجهادپـه قطـع کیدواوختمیدوکې کوښښ وکړ(نعوذ باالله). ولـې چـې مجاهدتـه داخطـره وي چـې ناست خلـک دده لـه اهـل سره خیانـت کـوي نوبیاکله جهادته ځي اوغیرله ضرورتـه مجاهدتـه لـه کورنـه وتـل جایزنه دي .ولې چې دخپل اهل ساتنه پرې واجـب ده.دقیامـت په ورځ به دداسې خیانـت کـونکي پـه نیکواعمالـوکې مجاهدتـه

حکم وشي چې څومره دې چې خوښه وي نیک اعـمال ترینـه واخلـه اوبیـانبی علیـه السـلام وفرمایـل چـې ستاسـوڅه ګـمان دی چـې دې خیانت کونکي ته به څه نیک عمل پاتې شي .

له دې نه معلومیږي چـې مجاهـدین پـه ناسـتوخلکوډیرلوی حـق لـري ځکـه چـې مجاهدین دناستوخلکوله طرفه جهادته تللوکې نـایبین دي اوپـه خپـل ځـان سره ددوی حفاظـت سـاتنه کـوي اومجاهـدینوخپل ځـان ددوی لپاره ډال جوړکړی دی .



فقیه ابواللیث سمرقندي رحمه الله خپل سند سره دحضرت عبدالله بن ابی اوفی نه نقل کوي چـې رسـول الله صلی الله علیه وسلم ارشادفرمایلی دی: چـې څـوک دیـویتیم پـه سردشـفقت لاس راکـاږي دهغـه لاس سره مسـح کیـدونکي هرویښته په بدله کې هغه لپاره یوه نیکي لیکلی شي اویـوه ګناه یی معاف کیږي اویوه درجه یی دالله په نزد لوړه شي .

دحضرت ابن عباس رضی الله تعالی عـنهما نـه روایـت دی چـې رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم فرمـایلي دي چـې څـوک یومسـلمان یتـیم بچـی خـوراک ،څښـاک اونـورو ضرورتونـوکې ځان سره یوځای کړي تردې چې هغه خودکفیل (یعنې لوی شي ).الله تعـالی هغـه لپـاره یقیناجنـت واجبـوي . حضرـت ابـودرداء رضی الله عنه وایي:چې یوکس درسول الله صـلی الله علیـه وسـلم پـه خـدمت کـې حاضرشـواودخپل زړه دسـختوالي شـکایت یـی وکړ.نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل:کـه چیـرې تـه غواړې چې ستازړه نرم شي،نودچادیتیم په سربانديې لاس راکاږه اوپه هغه باندې خوراک اوڅښاک وکړه .

هغــه کورمبــارک دی چــې کــوم کــې یــویتیم پالنــه مومي اوداسې هم راځي چې دهغه کورلپاره بربادي ده چې کوم کې دیتیم حق نـه پیژنـدل کیـږي اوکـوم خلک چـې دهغـه حق پیژني هغوی مبارک دي .

په بخاري شریـف کـې حـدیث شریـف دی چـې رسـول الله صـلی الله علیـه وسـلم ارشـادفرمایلی دی : أناوکافـل الیتـیم فـی الجنة کهذین یعنې زه اودیتیم بچي پالونکی به جنت کې داسې نـږدې یولکـه دادوه ګـوتې. ددې دووګوتویوځـای کولـوسره یـی اشاره هم وکړه .

دمسلم شریف په حدیث کې دي چې محمدصلی الله علیه وسلم فرمایلي دي :کافـل الیتـیم لـه أولغیـره أناوهوکهـاتین فـی الجنة .یعنې زه اودیتـیم پـالونکی اګرکـه یتـیم دهغـه خپـل وي یـاپردی پـه جنـت کـې داسـې نـږدې یولکـه دادواړه ګ ګـوتې دشهادت ګوته اوهغه ته نږدې منځنـی ګوتـه یـی اوچتـه کـړه اوورته یی اشاره وکړه .

دابن ماجه حدیث دی چـې هرچاددریویتیمانوپالنـه وکـړه هغه سړی ته دومره ثواب ورکول کیږي لکه چې دشپې عبادت کوي اودورځې روژه نیسي اودخدای په لاره کې جهادکوي اوتوره یې په لاس میدان ته وتلی وي .زه اوهغه به په جنت کـې داسـې ددوه وروڼوپه شان یولکـه چـې دادوه ګـوتې سره خپلـوکې نـږدې دي .بیاهغه صلی الله علیه وسلم دشـهادت ګوتـه اوپـه خـواکې نږدې ګوته اوچته کړه .

ابوعمران جوني رحمه الله دابوخلیل رحمه الله نه نقل کوي چې مادحضرت داؤدعلیه السلام سوالونوکې چې کـوم هغـه دالله تعالی په بارګاه کـې پـیش کـړي ؤداهـم ولوسـتل چـې ده لـه الله تعـالی نـه پ،ښـتنه وکـړه چـې :ای الله !دهغـه کـس بدلـه څـه ده؟چـې ستادرضـالپاره دیـویتیم بچـي یاکونـډې ښـځې کفالـت وکړي.ارشادیی وفرمایه :دهغه بدله داده چې زه به هغه ته خپل

سوري کې هغه وخت پناه ورکړم هرکله چې زمادعرش له سوري نه ماسوابل سورئ نه وي .

ترمذي پـه صحیح سـندسره روایـت کـړی دی :هرچاچې دکوم مسلمان یتیم دخوراک اوڅښـاک کفالـت وکړنـوالله تعـالی هغه جنت ته لیـږي مګرداچې داسې ګنـاه یـې کـړې وي چې دبخښلووړنه وي .

همدارنګه یـې پـه حسـن روایـت سره نقـل کـړی دی چې چادیتیم پالنه وکړه اوهغه یې په خپلوپښوودراوه الله تعـالی هغـه لپاره جنت واجبوي .

دابـن ماجـه حـدیث دی چې محمدصلـی الله علیـه وسلم وفرمایل:دمسلمانانوله ټولونه بهترکورهغه دی چې پکې لـه یتـیم سره ښه سـلوک کیـږي اودیومسـلمان لپـاره بدکورهغـه دی چې پکې یتیم ته تکلیف اوآزاروړکول کیږي .

ابـویعلی پــه حســن ســند سره روایــت کــړی دی چــې محمدصلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه به لومړی شخص یم چې زمالپاره دجنت دروازه خلاصه کړای شي مګرزه له خپل ځان نـه مخکې یوه ښځه وینم اوپوښتنه ترینه کـوم چې تـه څـوک یـی؟ اوله مانه مخکې ولې روانه یی؟هغه به ووایی:زه داسې ښځه یم چې دخپلو یتیمو ماشومانودپالنې لپاره په کورکې ناسته وم.

دطـبراني روایــت دی چــې محمدصـلی الله علیـه وسـلم وفرمایل : په هغه ذات مې قسم دی چې زه یی په حقـه رالیږلی یم الله تعالی د قیامت په ورځ پـه هغـه سـړي عـذاب نـه نـازولي چاچې په یتیم رحم وکړ او له هغه سره نرمي خبرې اتـرې وکـړي اوپه خپله پناه کې یی واخیسـته او وربانـدې ظلـم او زیـاتی یـې ونکړ .

دمحدثینویو ډلې روایت کړی دی اوحـاکم ورتـه صـحیح ویلي دي چې الله تعالی یعقوب علیه السلام ته وفرمایل:

ستا دسترګو دنظر دکمیدو او د ملا دکړو پیدو همدارازلـه یوسف علیه السلام سره دخپلوورونودناروا سلوک کولووجـه داده چې تاته یوه ورځ یـوروژه داراویتـیم راغـلي ؤ.تاسې دکـورنۍ پـه تعــاون سره یــووزه ذبحــه کــړه اوومـوخــوړه مګــر یتیم تــه موډوډۍ ورنکړه .پس الله تعالی هغه ته خبرورکړچې زه له خپـل مخلـوق نــه لــه ټولــو نــه هغــه څــوک زیــا ت خوښــوم چــې یتیمانواومسـکینانوسره مینـه کـوي .الله تعـالی هغـه علیـه السلام ته وحې وکـړه چې یتـیمان راوغـواړه اوډوډۍ وربانـدې وخوره ،نوهغه همداسې وکړه.

پـه صـحیحینوکې لـه حضرت ابـوهریرة رضـی الله عنـه نـه روایت دی چې محمدصلی الله علیه وسلم وفرمایل :الساعي علی الارملة والمسکین ،کالمجاهدفی سبیل الله تعـالی ،وأحسـبه قـال وکالقــایم لایفتروکالصــایم ثــم لایفطر .یعنــې کونــډې،یتیم اودمسکین پرورش کونکی داسې دی لکه چې دخدای پـه لارکـې جهادکوونکی دی .غالبادایی هم وفرمایـل :هغـه شـخص دهغـه چاپـه شـان اجرمـومي چـې هـره شـپه عبـادت کـوي اوهـره ورځ روژه نیسي .

دمخکینیوعالمانولــه یــوبزرګ نــه روایــت دی: چــې زه دڅونـدپـه لـومړي عمرکـې شرابي اوبـدکاروم مـایوه ورځ یـویتیم ولیداو ورسره مې ډیرښه سلوک وکړ .بلکل داسې چې څنګـه یـی پلارله خپل زوی سره کوي ،بلکه له هغه نـه هـم ښـه سـلوک.کله چـې زه ویـده شـوم نوخـوب مـې ولیـدچې دجهـنم ملایکـې پـه ډیرقهرسره ماراکش کوي اودوزخ ته مې اچوي .

په دې وخت کې هغه یتیم هلک راغـی اوورتـه یـې وویـل : داسړی خوشې کړی ترڅو ددې په اړه له الله تعـالی سره خـبرې وکړم مګرهغو انکاروکړ.

په دې وخت کې آوازوشوداپرېږدۍ مادغـه سـړی پـریتیم بانـدې درحـم لـه کبلـه معـاف کړ.پـه دې وخـت زه لـه خوبـه بیدارشوم اوله هماغـه وخـت نـه لـه یتیمانـوسره ډیرښـه سـلوک کوم .

اللهم اجعلنا مـن الـذین ینصرون الیتمـی واعوذبـک ان اکون من الذین یأذونهم اللهم فوفق جمیع المسلمین لأداءحقـوق شهداء صراطک المستقیم بجاه سیدالمرسلین آمین.

ليکوال: موسی فرهاد

# افغان فوج

## او د امريکايانو هيلي ...!!!

امريکايان د خپل پنځلس کلن يرغل يوه لويه لاس ته راوړنه دا ګڼي چې په افغانستان کې يې د امريکايي ګټو ساتونکی يو داسي ديمکراتيک سيټ آپ رامنځ ته کړی، چې خواوشا دري نيم سوه زره وسلوال پوځ يې د ميلياردونو ډالرو په مټ ورته تربيه کړ .

دوی هيله مند وو چې دا پوځ به هغه ځواک وي چې نور به امريکايان د افغانستان د ستراتيژيکي رهبرۍ لپاره په آرامه په خو محدودو بيسونو کې ځای پرځای وي او دفاع به يې همدا تربيت شده افغان اردو کوي .

خو کله چې يې په وړاندي د طالبانو په مشرۍ د افغان ولس کرکه او مقاومت ورو ورو مخ په زياتيدو شو ، او په مقابل کې يې ځای ځای جبهې او زياتره چريکي بريدونه دومره پياوړي او اغيزناک شول چې د هغه اردو له منځه هم وربانـدي بريدونه پيل شول ؛ نو د امريکايي اشغالګرو هغه هيلي يې ټولي په اوبو لاهو کړي چې دوی له وړاندي د افغان اردو په جوړولو کې اټکل کړي وي .

د افغان پوځ له منځه، پيل شوي کاري بريدونه چې په انګريزي کې دوی ورته insider attacks يا "green-on-blue" attacks نوم کاروي ؛ تر ۲۰۰۷م کال وړاندي ډېر کم تر سترګو شوي وو ؛ ولي له ۲۰۰۷م نه وروسته يې داسي بڼه غوره کړه چې د امريکا په مشرۍ اشغالګر ځواکونه يې ټول هک پک حيران او يو پربل په مکمل ډول بې باوره کړل .

پر امريکايي او نورو بهرنيو ځواکونو باندي د افغان ملي اردو يا پوليسو په يونيفورم کې د نفوذي مجاهدينو له لوري سخت کاري ګذارونه وشول چې په پنځلس کاله کې د بهرنيانو د ټولو تلفاتو ۲۱٪ سلنه برخه تلفات د همدې نفوذي مجاهدينو له لوري ورته رسيدلي ده.

د لانګ وار جورنال په قول : له ۲۰۰۷م راهيسي- لږ تر لږه له ۱۵٪ تر ۲۱٪ سلني پوري نړيوال او افغان ځواکونه د همدې نفوذي بريدونو په پايله کې وژل شوي او ۳۳٪ سلنه يې زخميان شوي دي .

At least from ۱۵٪ to ۲۱٪ international troops and afghan allied were killed, and ۳۳٪ wounded, in these types of attacks – known as "Green on Blue"– since ۲۰۰۷. -- according to the Long War Journal

د يوې شمېرني له مخې د امريکي دفاع وزارت ويلي چې په

۲۰۱۲م کې پر مـوږ ٦٤ بریدونـه د نفوذي کسانو له لوري ترسره شول .

د دې ترڅنګ امریکایان وایی چې د یوه کال په موده کې زمـوږ پـر عسـکرو بانـدي ۷،۲۲۸ بـرخ کـړای شــوي ریمــوټ کنټــرول ماینونــه وچاودیـدل چـې ٤۳٪ تلفات مـو لـه همدې لارې وګالل . او نور تلفات مو په مخامخ جګړو ، فدایی بریـدونو او پــر نظــامي بیســونو د توغنــدیو ویشتلو په پایله کې لیدلي دي .

نو دا یو آساسي علت شو چې د افغــان اردو پــه جوړولــو کــې د امریکایـانو هـیلي او ګټـې نیمګـړې شـوي . داسـې چـې دوی یـې هـیڅ ګمان نه و کړی .

## د چارواکو خپلمنځي بې باوري

کله چې امریکایي ځواکونـو د خپلو سرتیرو د کمولو پریکړه اعـلان کړه ، نو د کابـل د تپـل شـوي سیټ آپ چاروکي د خپلي بقاء په اړه نـور هـــم مایوســـه شـــول. پـــوځي او غیرپـوځي چـارواکي چـې مطلقـاً د امریکا پر ډالري معاش سره را غونډ دي او بله هیڅ بنیادي انګیزه نلري ؛ ټول پخپلو کې سره بې باوره شـول ، ګډوډي او اختلافونه پکي را څرګنـد شول ، تردې چې اوس په هیواد کې عمـلاً دوه بـې واکـه حکومتونـه واک چلوي .

داسي یـو نـا اټکـل شــوي سـیاسي او انتظـامي ګډوډیشــن د ملکـي او عسـکري چـارواکو تـرمنځ فاصـله را پیـدا کـړه ، دا فاصـله دې سرحد ته ورسیده چې په یوه سیمه کــې عســکر د طالبــانو لــه لــوري محاصره وي ، چارواکي نشي کـولای چې د خلاصون لپاره یې نور قطعات ورواسـتوي ، او یـا د هغـوی اکـمالات وکړي .

حتـی داسـی هـم پیښـه شـوه چې د طلوع نیوز د خـبر پـه آسـاس په ارزګان کې د جګړې لپاره د کابـل چـارواکو لـه متقاعـدو ترافیکـو نـه غوښـتنه کوله چـې جګـړې تـه ولاړ شي .

دغـه ډول بـې اعـتمادي دې حالت تـه ورسیده چـې هرځـای پـه سلګونو او لسګونو عسکري قطعـات د مجاهـدینو لیکـو تـه تسـلیمیدل پیل شول. او دا لړۍ پـه ډېـره تیـزي سره اوس هم جریان لري .

د دوی د خپـل منځــي بــې بـاورۍ او نـاهمغږۍ پـه پایلـه کـې د امریکایي جنرال نیکولسـن پـه وینـا پـه یـوه میاشـت کـې ۹۰۰ افغـان عسـکر پـه اوسـط ډول ، لـه طالبـانو سره په جګړو کې وژل کیږي .

د غـزني ولایـت یـو سـیمیز طالـب قومنـدان ماتـه خپلـه کیسـه کوله ، چې موږ د یوې لـویې قرارګاه له څو عسکرو سره رابطه وکـړه چـې راتسلیم شي او یا پرقرارګاه د حملې لاره راته برابره کـړي ؛ ده راتـه وویـل چـې زه بـه د خـپلي پیـرې پـر مهـال تاسو تر دې ځایه راورسـوم ، پـه دې کــې ډېروخـت تیـر شـو ، وروسـته عسـکر راتـه وویـل : چـې دلتـه اوس بې باوري زیاته ده ، زه نه شم کولای چـې د خـپلي پیـري وخـت ځـان تـه مالوم کړم ، داسې چـې قومنـدان او یـا تـر هغـه وریورتـه د بـل کنـډک قومندان د پیره دارانو نومونه لیکلي وي ، وخت نه ورته ښیـي چـې وایـی هسی نه طالبان راباندي راولي ، کله چې د هر عسکر د پیرې وخت شي ، په همغه وخت کې یې قومنـدان او څو نور عسکر راځي عسـکر راپورتـه کوي ، کله چې یې د پیرې پـه ځـای کې کښینوي وسـله ورتـه سـپاري او دویـم اعـتمادي پیـره دار بیـا د هغـه لپاره کښـینوي ترڅـو لـومړی پیـردار وځاري .

## د افغان عسکرو د بمبارولو لامل

د بهرنیو ځواکونو جنرالانو په وار وار له روانو حالاتو ژوره اندېښنه څرګنده کړې ده. دوی هر یو پخپله وینا کې وایي چې موږ د افغان ځواکونو له روان حالت نه ډېر اندېښمن یو . بیانونه یې په میډیا کې راځي .

له یوه طرفه دوی د افغان عسکرو په ملاتړ په جګړه کې برخه اخلي ، ځکه چې پر هغوی یې د مقاومت باور نشته ، ګمان کوي چې هسې نه سیمې طالبانو ته پرېږدي ، خو له بل طرفه بیا ځان ورنژدې کولای نشي چې د عسکرو له منځه د بـه د مجاهدینو نفوذي کسان وربانـدې برید وکړي، او په عین وخت کې دا ویره هم لري چې کورني عسکر طالبانو ته تسلیم نشي .

نو کله چې پر هغوی باندې لږ شک ورته پیدا شي ؛ سمدستي وربانـدې بمبار وکړي. او کله نا کله داسې هم وي چې د اردو د عسکرو ترمنځ خپل اختلافات وي ، هغوی بیا امریکایانو ته د یو او بل شکایتونه کوي او بیا د همدې شکایتونو پر بنسټ امریکایان پر چا باندې بمبار وکړي .

د دې ډول پېښو نوعیت یو په ارزګان کې رامنځ ته شو چې د پخواني قومندان مطیع الله ۸ تنه وسلوال عسکر د کندهار د رازق په اشاره ووژل شول .

دویم د پکتیا په جانیخیلو کې رامنځ ته شو چې یو کنډک عسکرو باندې طالبانو ته د تسلیمېدلو شک پیدا شوی وو ، نو ویل کیږي چې امریکایانو بمبار کړل .

## پایله

نو دې پورتنیو دلایلو ته په کتو سړی ویلای شي چې د افغان پوځ په روزنه کې چې امریکایانو کوم امیدونه تړلي وو ؛ هغه ټول په مطلق ډول په ناامیدۍ او مایوسۍ بدل شوي دي .

۱ - دا ځکه چې یو خو افغان قوم فطرتاً له ګوډاګیتوب نه کرکه لري ، د زړه له تله یې دا نه خوښیږي چې د پیسو او یا قدرت په بدل کې دین ، وطن ، عقیده ، ناموس او خپل تاریخ وپلوري . او که بیا هم داسې څوک پکښې پیدا شي نو هغوی به د ګوتو په شمېر وي . پر امریکایي ټرینرانو باندې د خپلو شاګردانو له لوري بریدونه کول یې ډېر واضح ثبوت دی .

۲ - دویم داچې افغانان طبعاً خصوصاً پښتانه له هغه چا سره چې هغوی د دین او وطن د آزادۍ پخاطر مبارزه او جهاد کوي ؛ دوی که څه هم په مخالفت کې یې ولاړ وي ؛ خو کرکه ورنه کول او یا یې په مقابل کې په کلکه دریدل ؛ د دنیا او آخرت بربادي او تباهي ګڼي .

۳ - درېیم داچې د امریکایانو بې باوري پر افغان عسکرو او د افغان عسکرو خپل منځي بې اعتمادي ، همدارنګه له اصلي سره پوځ د قومونو او سمتونو پر بنیاد جوړول ؛ هغه څه دي چې نن یې د امریکا او ناټو د یوې نیمې لسیزې ټولي خوارۍ په اوبو لاهو کړي ښکاري .

٤ – څلورم داچې د طالبانو هغه تګ لاره چې په تسلیمېدلو سره ، به د عسکر د سراو مال ساتنه کیږي او په عزت سره به له خپلي کورنۍ سره خپل عادي ژوند پیلوي ؛ دغه تګلاره یې خورا اغیزناکه او مؤثره ثابته شوې. چې په سلګونو او لسګونو عسکري قطعاتو خوا اړولي او له طالبانو سره یوځای شوي دي .

# فشار !!

د عابدليکنه

ددې ټکي له ليدو سره دلوستونکي ذهن ډېرو فشارونوته ځي، خو دنن ټکی له ځان سره دسياسي په مختاړي لـه نـورو ذهنيت اړوي اود ( سياسي فشار) کلمه دمطبوعـاتو سراوپـای دی.

پرطالبانودفشـارراوړلو موضـوع دټولـو رسـنيو گرمـه موضوع ده او هغه دچا خـبره دنـن مـلږيايي گـرو ده . داچـې داخبره به څومره حقيقت وي، شايد دقيقه يې ونه شو انگېرلی، خو ترديې حده رسېدل يې هم شايد له ځان سره يوڅـه ولـري !!

زمونږ له دې سره کار نه شته چې شته والی او نشـتوالی يې سپين کړو، اونه هم له هغو کريوسره لاس لروچې دغه ډول باريک رازونه ددوی قلم ته ورکوي، البته هغه څه چې ديوراڼه حقيقت په ډول يې خلکوته ښـودلی شـو، دخپلـې سپېڅلې عقيدې او ددې عقيدې دهمفکرو په اړه دهغـوی دحقيقـت او واقعيـت وضـاحت دی، چـې بـار بـار ورتـه اړکيـږو او هـم داسلامي مسؤليت له مخې مکلف يو په ځيني مواردو کې يې ورک لوری په نښه کړو.

له څه مودې راپه دېخوا داسې آوازې اوخبرونه خپريـږي چې گواکې دپاکستان حکومت پرطالبانو فشار راوستی، ترڅو له کابل ادارې سره خبروته کينـي، کنـه نوبـدې پـايلې بـه يـې وڅکي، ياخوبه ټول ونيول شي اويابه له يوه بل ورته غبرگون سره مخ شي ... د دا ډول آوازو له خپرېدو بايدداسې وانگېرل شي لکه ترديې دمه چې پرطالبانو هيڅ نوعه فشار نه وي راغلی او ډېر آرام ژوند دې لرلی وي ، نواوس به ديوچا له خوا فشار دوی دېته مجبور کړي چې له خپلې خبرې تېرشي !!

طالبانو چې له پاکستان سره په ډېرو مواردو کې ترحده له لوړ زغم څخه کار اخيستی يواځينی مجبوريـت يـې همـدا و چې ددوی دهجرت خاوره ده او دهجرت ناکراره شـپې پکـې تېروي اودفشار وروستی حـدهم همـدومره کېـدای شي چـې دهجرت دا ديار پرې ودرېږي، په داسې حال کې چې طالبـان ترديې په وار وار له سختو شپبو تېرشوي، خو خپل هدف ته په تعهداو تقدس کې يې ذره تزلزل هم نه دی راغلی، هيڅکله او هيڅ وخت يې درانه فشار اوسخت کړاوته پـه دې تـن نـه دی ورکړی، چې وار له مخه يې په ظاهري اسـبابوکې کـوم ډاډ او اطمينان لرلی وي، پرته له دې چې ټول توکل او بروسه يې پـه متعال خدای کړې، اوپـه دې لارکـې چـې بياهرڅـه ورپـېښ شوي هيڅکله پرې پښېمانه شوي هم نه دي، بلکې پـېښ شر ورته په خير تمام شوی اوله بدحالته يې ښه حالت ته اوښـتون کړی ، داداسې څه نه دي چې دهغوی په حق کې دې مبالغـه اوهغوی ته تملق وي، بلکې اوس نـړۍ هـم پـه دې حقيقـت اعتراف کوي او په جنگ کې ورسره ترسپوږمو راغلي .

نو بیا ولـې بـار بـار وازمویـل شي او لادې تراوسـه هـم ددوی په غـرض او هـدف کـې خفـا ولیـدل شي ؟! څـومره کړاوونه یې ولیدل؟ له څه ډول سختو اوترخو مرحلو تېرشـول ؟ غرونه غرونه ابتلاوې پـرې راغلـې، لـه ډول ډول نړیوالـواو ســیمه ایــزو دسیســو سره مــخ اولاس اوګرېــوان شــول، خوهمداسې لکه غرونه ورته ودرېدل . دنیاولیـدل چـې ددوی په وړاندې دسترو قوتونو! او لویو ایتلافونو سیاسـتونه څنګـه بې ثباته اومبتذل شول ، خوددوی سیاست تغیرنه دی خـوړلی او سره له دومره تحولاتو یې بیاهم خبره یوه ده !!

نن بیا ولې دسولې اومذاکراتو په نومونـو ازمویـل کیـږي اودبیلابېلو جهتونو له خوا د( فشار) خـبره هرځـای زمزمـه ده ؟؟!! طالبانو چې دمذاکراتو اوسولې په اړه خپله دلمر په څېـر روښانه تګلاره اعلان کړې ، په نړۍ کې هیڅـوک نشـته چـې ووایي : که ربښتیا سوله مقصود وي ولې له طالبانو سره د دوی داعلان شوې تګلارې له مخې مذاکرات نه پیلیـږي، سره ددې چې ځمکني حقایق ورځ تربلـې همـدا واقعیتونـه ثـابتوي، او مونږوینو چې یو لورته دطالبانو دتسلط ساحه پراخوالی مومي اوبل طـرف تـه دامریکایـانو کرېـو ژمنوتـه ژمنتیـاهـم دکنـدز، ارزګان، فراه، پکتیا، هلمند اونورو پېښو لاښه څرګنده کړه، او نور نو ددوی په وعدو نه وفا له چا نه شي پټېدای.

زمونږ ډېری افغانان شاید دافکر وکـړي چـې کـه دولـت طالبانو ته په حکومت کې برخه ورکړي نو ولې سوله ونه کړي ؟! راځئ داخبره لږ وڅېړو اوحقیقت ځان ته معلوم کړو :

که سوله کول دې تـه وایـي چـې طالبـان دې وسـله پـه ځمکه کیږدي او په دولت کې کې دې دڅو چوکیو په اشـغال سهم واخلي، نودا دهغوی په حق کې داسـې حکـم دی چـې دهغوی له پېژندلو پرته پرې کیږي.

دطالبـانو جنـګ داقتـدار اوقـدرت لپـاره نـه دی چـې دوزارتونو پـه ورکولـو سره دې لاس تـرې واخـلي، دطالبـانو جنګ ددې لپاره  دی چې حکم دې په دیمکراسۍ نه بلکې په قرآن وشي اودسر خبره دې داسـلام لـه سرچینـې وي ، نـه پـه دیمکراسۍ، چې قرآن پکې محکوم وي او لومړیتوب دې هـم بشري قوانین اودیمکراسي ولري، او دیني اقدار دې په ثـانوي ارزښت کې وي .

په همدې تړاو یوه اشتباه چې ډېری خلک پکې مبـتلادي هغه داچې ویل کیږي: دطالبانو جنګ به دحکومت په وړاندې څنګه وي ، سره ددې  چې په حکومت کې ملایان هـم شـته، چاروکي، ملي اردو، پولیس اونور حکومت پلـوی جنګیـالي ټول مسلمانان دي، لمونځ کوي، روژه نیسي اوپه ښکاره کفـر اعتراف هم نه کوي ؟ یاداچې داجنګ به افغان وژنه وي اوکـه بل څه ؟!

ولې هیڅوک دانه پوښتي چې په اسلام ددوی داتظاهر په اسلام کې دیمکراسي ده اوکه په دیمکراسۍ کې مسلمانان دي ؟! چې تـرمنځ یـې خـورا زیـات تـوپیر دی، پـه اسـلام کـې دیمکراسي داسـې چـې پـه فروعـي چـاروکې دیمکـراسي او بشري قوانین داسلام تابع وي او دسر خبره په الهي لارښوونو اوقرآن وي چې په دې صورت کې به قرآن حاکم او دیمکراسي محکومه وي .

او په دیمکـراسي کـې اسـلام داسـې چـې دسرخـبره او اصول په بشري قوانینو اودیمکراسۍ وي اوقرآن محکوم وي ، یعني داچې دوی مسلمانان دي خو دديمکراسۍ پـه چوکـاټ کې دننه  او اسلام یې ددیمکراسۍ تابع دی .

له طالبانو سره که حکومت هرڅه ومني اوله ډېرڅه ورتـه تېرشي، خو هیڅکله به له دې تېرنه شي، چې دسر خبره دې په

ديمکراسي نه وي، ولې برعکس طالبان هيڅ نه غواړي اوهيڅ ونده به په حکومت کې وانخلي، خوچې دسر خبره په قرآن شي اواسلامي نظام رامنځته شي .

نو خلک بايد پوه شي اودکابل دچارواکو په غولوونکو شعارونو او په اسلام دتظاهر په چمونويې هيڅکله خطانه شي.

سوله، هيواد، پرمختګ او آزادي هغه خواږه نومونه دي چې په زباني ګردان يې ډېرتکراروي خو په حقيقت کې ورته متعهد نه دي.

طالبان دسولې دښمنان نه دي، بلکې اسلام ټول سوله او امن امن دی، خو داسې نه چې نوم دسولې وي اوپه واقعيت کې اسلامي ارزښتونه ترپښولاندې کول وي .

که سوله رښتونې وي اودسيسه نه وي اوپه دې خبره انجام شي چې دسرخبره په ديمکراسي نه، بلکې په قرآن وي، نو دډېرو هغو مرګونو حکم هم ورسره بدليږي چې اوس پکې خلک شک کوي اودديمکراسي قربانيان يې بولي .

## من ستر عورة أخيه المسلم ستـر الله عـورته يـوم القـيامة

عن عبد الله بن عباس رضي الله عنهما عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: (من ستر عورة أخيه المسلم ستر الله عورته يوم القيامة، ومن كشف عورة أخيه المسلم كشف الله عورته، حتى يفضحه بها في بيته) رواه ابن ماجه وصححه الألباني. قال المنذري: "ستر المسلم هو تغطية عيوبه وإخفاء هنَّاته (زلاته وهفواته وقبائحه)".رواه ابن ماجه كتاب الحدود باب ٥.)باسنادحسن.

همدارنګه له حضرت أبو هريرة رضي الله عنه نه نقل دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: (لا يستر عبد عبداً في الدّنيا إلا ستره الله يوم القيامة. (رواه مسلم) يعنې : پرده نه اچوي يوبنده په بل بنده مګرالله به په دغه بنده په قيامت کې پرده واچوي اوخلکوته به يي نه شرموي.

له حضرت أبو هريرة رضي الله عنه نه نقل چې نبي صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: من ستر مسلما ستره الله في الدنيا والاخرة. ( رواه ابن ماجه وصححه الألباني ). يعنې دمسلمان عيب ورته ښکاره شو،خو خلکوته يي ونه ښووه اوپرده يې پرې واچوله .نوالله تعالى به دغه انسان په اخرت کې دخلکوپه مخ کې نه شرموي ،اوپرده به پرې واچوي .

له حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دی چې نبي صلى الله عليه وسلم ويلي دي: (المسلم أخو المسلم، لا يظلِمه ولا يُسلِمُه، من كان في حاجة أخيه كان الله في حاجته، ومن فرَّج عن مسلم كُرْبَةً، فرَّج اللهُ عنه بها كُرْبة من كُرَب يوم القيامة، ومن ستر مسلماً ستره الله يوم القيامة).الصحيح للبخاري باب لايظلم المسلمُ المسلمَ ولايُسلمهُ) . يعنې :مسلمان دمسلمان وروردی،نه به پرې ظلم کوي اونه به يي چاته سپاري .څوک چې ديومسلمان ورورپه حاجت پوره کولوکې وي ،الله پاک دده دحاجت په پوره کولوکې وي .څوک چې يومسلمان له تکليف اوسختی نه خلاص کړي ، الله تعالى به دغه انسان دقيامت له سختی نه خلاص کړي . څوک چې ديومسلمان په عيبونو پرده واچوي ،الله تعالى به دقيامت په ورځ په ده باندې پرده واچوي .په حديث شريف کې راغلي دي له حضرت معاوية رضی الله عنه نه نقل دي ، هغه وايي :ماد رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل يی:انک ان اتبعت عورات المسلمين افسدتهم اوكدت ان تفسدهم.(رواه ابوداود،کتاب الادب باب ٣٥و٣٧ وابن حبان فی صحيحه)

ژباړه:که چيرې دمسلمانانوپه پټوعيبونوپسې شې نو به يي په فسادکې مبتلاکړې اويابه يی فسادته ورنږدې کړې .

داسلامي نړۍ دنومیالي عالم ، شیخ القران والحدیث

## مولانا حمدالله جان (داجوي) مدظله العالي

# د ژوند لیک یو څرک په څرک کې

مفتي محمد ګل سعید

دغـــــه واړه کـرامت د عاشـوقی دی
چې څوک غوث کاندي څوک قطب څوک اوتاد

مولاناحمـدالله جـان داجـوي یـا هغـه نامتو عالم چې دژوند ټوله دوره یې په علم ،عرفان ،مناظرو اوتدریس کې تیـره شـوه اویـوه دنیـایی لـه خپـل علـم اوفـیض نـه سیرابه کړه.

د مولاناصاحب اخلاقي اومعـاشرتي زندګي باندې تبصره کولوځخه ځانته لـوی دفترجوړیدای شي ،دلته په لنډوالفاظو دده سره دمرکې پـه تـرڅ کـې دده دژونـدلیک یوڅرک په څرک کې راوړو.

مولانـا صـاحب پـه اسـلامې تـاریخ اوسـیرت کـې پروفیسر-،په تصـوف کـې دمحی الـدین ابـن عربـی نعـم البـدل ،پـه فلسفه ،منطق اوطـب کـې دابونصرفـارابی اوشـیخ ابـن سـینادافکاروخزانه اوپخپلـه ددې فنونونامتومجتهد،معاني اوبیان کـې دتفتازانی مثیل،په علم اخلاق کې دجـلال الدین دواني ،په اسلامی تاریخ کـې دابـن خلدون اوابن کثیرسیال ، پـه احـادیثوکې دعلامه شاه انورشاه کشمیری لـوی نائب اوپه تفسیرکې دامام رازی درازونولوبیش قیمتـه خزانـه ،دفقهـې پـه احکـاموکې دحضرـت امـام ابوحنیفـه رحمـه الله دافکـارومترجم ،دمـذهب پـه حصـه کـې دمقابـل سره یوسترمارشـال اودفلسـفة الاحکـام والمـواعظ دبیـانولودحلقې دویـم غزالي دی.

شیخ القران والحدیث استاذالعلماء بقیة السلف فخرالخلف مولانا حمدالله جان (دډاګـی مولانـا صـاحب) دمشـهورعالم مولانا عبـدالحکیم زوی دمولانـا صـدیق وراره (دوی دواړه دشـیخ الهنـد مولانـا محمودالحسـن دیوبنـدي شـاګردان و)،دمولانارحمـت الله لمسـی پـه ۱۳۲۴ق مطابق (۱۹۰۴م )کال دصوابی په ډاګـی نومې کلي کې زیږیدلی دی.

داکـورنی دپاکسـتان پـه خیـبر پښتونخواکې په علم اوعرفـان مشـهوره اویوه فاضله کورنیده. دمولاناصـاحب لـه امله ډاګی کلی په افغانستان اوپاکستان کې شهرت لري .نوموړی لادمورپـه ګیـډه کې وچـې پلاریـی وفـات شـواوچې کلـه دشپږوکلونوعمرته ورسیدنوموربې بې هم وفات شوه،او تربیه یی خویندوته ورپه غاړه شوه .

### زده کړې:

مولاناصـاحب ابتـدایی زده کـړې دډاګی کلي په ښوونځي کې وکړې .بیایی دیني علوموته مخه کړه اوله خپل اوښـې قاضي امان الله نه یـی ددینـي علومـوزده کـړه پیـل کړه.منځنـی زده کـړې یـی دزروبـی لـه مولاناحبیـب الله صـاحب (دزروبی صاحب حـق صـاحب رحمـه الله چې دمرحوم شیخ الحدیث مولانـا مفتـي محمدفریدعلیـه الرحمـه پلارکیـده)، څخـه وکړې.دلـوړوزده کړولپـاره سـهارنپورته لاړاوهلتـه یـی دشـیخ المشـایخ مولانـا زکریاعلیه الرحمة دشاګردۍ ویاړوګاټـه .ده پـه سـهارنپورکې لـه شـیخ المشـایخ مولانـا محمدزکریاعلیـه الرحمـة ،مولانـا عبداللطیف قدس سره، مولانا عبـدالرحمان کاملپوري رحمه الله ،مولانـا اشرف عـلي نـورالله مرقـده،مولانا منظوراحمـدنعماني رحمه الله اومولانا اسـدالله صـاحب قـدس

سره نه لوړې زده کړې وکړې اودیوه نومیالي عالم په حیث راڅرګندشو.مولانا صاحب دطالبۍ په دوران کې تدریس کاوه اوزیات شمیرکتابونه یې په طالبۍ کې درس کړي دي .له فراغت نه وروسته یې دخپل کلي په جومات کې تدریس پیل کړاوپه زړه پورې تدریس یې وکړ.داچې نوموړی ډیرذهین ،فطین اودقوي ذهن خاوندؤ،نوهره ورځ به یې اته څلویښت کتابونه طالبانوته تدریسول اوپه دې توګه یې دتدریس لړۍ روانه وه.په ۱۴۰۷ق/۱۹۸٦م کال کې یې دپیښوردصوابۍ په ډاګۍ نومې سیمه کې دمظهرالعلوم په نامه دیوې لویې دیني مدرسې دبنسټ ډبره کیښوده اوپه همدې مدرسه کې یې تدریس پیل کړ ،چې تراوسه پورې په همدې مدرسه کې دتدریس سپیڅلې اومقدسه دنده اجراکوي .ددې مدرسې دتاسیس شپږڅلویښت کاله کیږي اودمولاناصاحب دفراغت شپږاویاکاله وشول .نوموړی هرکال لویه دوره تدریسوي ،عالمونه پرې پنډوي ،په سلهاوو طالبان یې په مبارکو لاسونودفضیلت پګړۍ تړي اوسنددفراغت ترلاسه کوي .مولانا صاحب هرکال دلویې دورې له پای ته رسولونه وروسته دشعبان په میاشت کې دقران عظیم الشان تفسیردرسوي، چې له شمیرنه زیات طالبان ورڅخه استفاده کوي .مولانا صاحب اوس مهال د۱۰۲کلونوپه عمر دنبوي احادیثوپه تدریس بوخت دی .لوی خدای دې ورته اوږدژوندورپه برخه کړي.

### دطالبانوپه حکومت کې دکابل جامعه فاروقیه:

دافغانستان دطالبانوپردین اوشریعت مین اسلامي تحریک دواکمنۍ په خپله شپږکلنه موده کې نه هیریدونکې،دیني ،سیاسي،اجتماعي داسې لاس ته راوړنې ترلاسه کړي دي چې له ده څخه دمخه حکومتونویوه هم نه وه کړې،سره له دې چې هرډول امکانات هم ورسره ؤ،چې دهغوله جملې څخه یوهم ددیني مدارسوتاسیس ؤ.

کله چې طالبانوکابل ښارونیوه اودافغانستان زیاتره سیمې یې له خپل واک لاندې راوستې نودهیوادپه سطحه یې په ټولوولایتونوکې لوې لوې مدرسې جوړې کړې .

ددغو مدرسوشاګردان به تکړه زده کونکي اومبارزمجاهدین ول . دکال زیاته برخه به په درسونواخته ؤ اوضرورت په وخت کې به دجنګ لومړیوکرښوته تلل اوهلته به یې دخپل دښمن په مقابل کې په ډیرشجاعت سره جهادته ادامه ورکوله .دوی په کندهارکې جامعه عمرجوړه کړه،په جلال ابادکې یې جامعه صدیقیه ،په خوست اونوروولایتونوکې یې هم دديني علومودتدریس اواشاعت لپاره لوی لوی مرکزونه جوړ کړل .

په دې لړکې دطالبانودمعارف هڅاند وزیر ښاغلي ملاامیرخان متقي صاحب ( الله تعالی دې دلازیاتو خدمتونولپاره اوږدژوندورکړي .)په کابل کې د (الجامعة الفاروقیه ) په نامه یوه لویه ديني مدرسه جوړه کړه.دامدرسه په خپل وخت کې له ګردوڅخه لویه دیني مدرسه وه،چې په خپله دافغانستان طالبانوزده کړې په کې کولې.

دمدرسې مؤسس جناب متقي صاحب داستاذانوتنخااودطالبانوغذائي لګښت له بیت المال نه ورکاوه. ښاغلی متقي صاحب چې سیاسي بصیرت اوښه قریحه لري،هڅه یې داوه چې ددې مدرسې لپاره دګوتوپه شمیر نامتو مدرسین اوعالمان له لراوبرنه راټول کړي اودامدرسه دهیوادپه سطحه دعلم اوعرفان عظیم مرکزوګرځي. هماغه ؤچې په خپل دې هدف کې کامیاب شواوعمده اوزبده مدرسین یې دې جامعې ته راغونډکړل . داجامعه چې ګڼ شمیرطالبان په کې روزل کیدل اوپه افغانستان اوپاکستان کې یې نیک شهرت خپورؤ ، د موقوف علیه اولویې دورې په شمول ګردفنون په کې تدریس کیدل اومولانا حمدالله جان صاحب دامت برکاته العالیه په کې دصدرالمدرسین اوشیخ الحدیث په حیث ټاکل شوی ؤ.مولانا صاحب په همدې مدرسه کې زیات شمیرطالبان ؤ.مولانا صاحب په همدې مدرسه کې زیات

شمیرطالبان وروزل چې دتدریس ترځنګ یی دقرآن عظیم الشان ترجمه هم کوله ،او په شریعت غړرادیوکې به خپریدله .

مولانا صاحب چې دعمرزیاته برخه یی ددیني علوموپه تدریس کې تېره کړه اوزیات شمیرشاګردان یې جامعې ته وراندې کړل ، دوه ځلې دجمعیت علماء اسلام لخوادمولانا مفتي محمودرحمة الله علیه په هڅه قومي اسمبلی ته کاندیدشو،خومتاسفانه چې قومي اسمبلۍ ته یی لاره پیدانکړه اوپه یوځورایوپاتې راغی .ده دکشمیرپه جهادکې برخه اخیستې اوداسلام دمقدس دین داعظیمه فریضه یی اداکړې ده . مولانا صاحب په عقیدوي لحاظ داسلافویوه ښه نمونه ده ،ده امثال اوس ډیرکم ترسترګوکیږي .ده دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه مسلک ته په زړه پورې خدمتونه وکړل اوپه دې لاره کې یې بې دریغه قربانۍ ورکړي دي .دفکراونظرپه لحاظ زمونږ دهیواد دمخکینیوعالمانوپه ځیردی ،چې یې هر وخت دلامذهبو اولار ورکو خلکوسره مبارزې کړي دي ،دحق ملګری وي اوددښمنانو دسترګوخار ګڼل کیږي .

مولانا صاحب له شمیره زیات شاګردان روزلي دي ،چې هریویی لوی علمي شخصیت دی اواوس هم دمولانا صاحب په استاذۍ اودهغه څخه داستفادې کولوپه حقیقت معترف دي اوهریودغه اعتراف دخپل علمي مقام اولیاقت داثبات لپاره قاطع برهان ګڼي.

دمولانا صاحب دشاګردانوشمیرله شمیره زیات دی،چې دټولو شاګردانو نومونه ذکرکول یې ناشونی دی . دیوځوشاګردانونومونه یی دادي :

(۱) ـــ کابل استادچې لومړنی شاګردیی دی

(۲) ـ دپیرسباک علیه الرحمة ورور

(۳)قاضي عنایت الله چې دمولانا صاحب دخورزوی دی.

(۴) ـــ شیخ الحدیث مولانا عزیزالله مظهري دغوربندچې فعلاپه هریپورکې ددیني علوماستاددی.

(۵)مولانا عبدالرحمان خلفي دشبقدر او.......

**تصوف اوعرفان:**

مولانا صاحب دظاهري علوموترڅنګ په تصوف کې هم لوی لاس لري،ده دنوښاردمولانا عبدالسلام علیه الرحمة (پیرسباک صاحب) لاس نیوی کړی اوپه ځلورواړوطریقوکې یی خلیفه اوماذون دی.

مولانا صاحب له غیرمقلدینواوپنج پیرانوسره ډیرضددی اوله هغوی سره یې زیاتې مناظرې کړې دي .ده په حرمینوکې له پنج پیرمولانا صاحب (محمدطاهر)علیه الرحمة سره اوهم له یووهابي عالم سره مناظرې وکړې اوپه هغوی دواړوبرلاسی شو،چې بیاده ته دمناظرحرمین لقب ورکړل شو. مولانا صاحب په حرم شریف کې دقران عظیم الشان تفسیراوترجمه شروع کړه د۱۳سیپارو یې هلته تفسیر وکړ اوپاتې ۱۷سیپارې یې دسمندرپه اوږده سفرکې تدریس کړې چې په دې توګه یې دتفسیردوره پای ته ورسوله ،اودمدرس حرمین لقب یې وګاټه .

**تصنیفات:**

(۱)البصائرلمنکري التوسل بأهل المقابر(داکتاب یې په ځینواختلافي مسائلوکې لیکلی دی اودترکیې دحکومت لخواځوکرته چاپ شو.

(۲)مجمع الاشعار(دشعرونوټولګه)

(۳)په وظائفوکې رساله

(۴)دبخاري شریف شرح

(۵)دقران کریم تفسیر(مظاهرالقران فی خلاصة التفاسیر)

**اولادونه:**

مولانا صاحب ځلورلونې اوځلورزامن لري.مشرزوی یې مرحوم پروفیسرمولانا فضل الله سلیم (ګولډمیډلسټ)، دویم یې ډاکټرانعام الله ،دریيم یې مولانا لطف الله جان چې دمدرسې ناظم دی،ځلورم یې مولانا اشفاق الله خان نومیږي .



# نگاهی به زندگانی قرآن شناس
# کم نظیر مولانا احمد علی لاهوری

عبدالحلیم ـ بخش

شیخ‌التفسیر مولانا احمد علی لاهوری از جمله علمای حقانی‌ای بود که در تمام ابعاد زندگی‌اش تابع رضای الهی بود. ایشان در زمان خود عالمی محقق، مفسری بی‌نظیر و عارفی کامل و باتدبیر به شمار می‌رفت.

ایشان در روستای «جلال» از توابع شهرستان گوجرانواله (ایالت پنجابِ پاکستان) در دوم رمضان ۱۳۰۴ هجری قمری دیده به جهان گشود. این نور تابنده که در ماه نزول قرآن به دنیا آمده بود، تا آخر عمر با این نور هدایت عوام و خواص را به راه رستگاری و هدایت رهنمون شد.

پدر ایشان شیخ حبیب‌الله از سالکان سلسله چشتیه در عرفان و تزکیه بود. ایشان ابتدا به همت مادرش به فراگیری بعضی علوم ابتدایی مشغول شد. پس از آن به محضر ـ مردی درویش‌صفت به نام «مولانا عبدالحق» سپرده شد و ایشان نیز با کمال شفقت و محبت به تعلیم و تربیت مولانا لاهوری همت گماشت. مولانا احمدعلی پس از مدتی به آغوش پُرمهر پیشوای انقلابیون ضد استعمار بریتانیا، مولانا عبیدالله سندی، رفت و ایشان وی را به مرشد خویش، شیخ غلام‌محمد دین‌پوری سپرد. ایشان همچنین از انگیزه‌های جهادی و فداکاری مولانا تاج‌محمود امروتی رحمهم الله سرشار شد.

پس از تاسیس مدرسه دارالرشاد در «گوت پیر جهندا»، (ایالت سند پاکستان) توسط مولانا عبیدالله سندی رحمه‌الله، حضرت لاهوری در این مدرسه ثبت‌نام کرد. ایشان در این مدرسه با سعی و تلاش و علاقه‌ی وافر طی ۶ سال دروس دینی را به پایه‌ی تکمیل رساند.

## آغاز زندگی حرفه‌ای

مولانا لاهوری پس از دانش‌آموختگی در مدرسه دارالرشاد، در همین مدرسه مشغول تدریس شد. مولانا سندی رحمه‌الله دخترش را به عقد وی درآورد. مولانا لاهوری در «گوت پیر جهندا» به مدت سه سال با تمام تلاش و جانفشانی به تدریس و تعلیم مشغول شد.

هنگامی‌که مولانا عبیدالله سندی رحمه‌الله حزب «جمعیت‌الانصار» را پایه‌گذاری کرد مولانا لاهوری را از مدرسه دارالرشاد به نزد خویش فراخواند. ایشان گروهی را به نام «نظارة المعارف القرآنیة» که شامل جمعی از علمای بزرگوار تازه فارغ‌التحصیل بود، آماده کرد. هدف از تشکیل این گروه دعوت و تبلیغ طبق نیازهای روز بود.

مولانا لاهوری نیز در پیشرفت این جماعت دوشادوش مولانا سندی تلاش می‌کرد. بعد از آن، ایشان به توصیه مولانا سندی رحمه‌الله در مدرسه‌ای در «نواب‌شاه» مشغول تدریس و تعلیم شد. مدتی نیز در علیگر (Aligarh) به تدریس پرداخت.

## فعالیت‌های سیاسی

مولانا عبیدالله سندی پس از هجرت به افغانستان، شاگرد و دامادش مولانا لاهوری را به‌عنوان مسئول جمعیت‌الانصار تعیین فرمود. مولانا سندی در دوران اقامت خویش در کابل، درباره حزب و فعالیت‌هایش توسط چند فرد هم‌فکر و هم‌عقیده به مولانا لاهوری نامه می‌فرستاد.

با دستگیری نامه‌رسان‌ها، استعمارگران انگلیسی در هند شروع به سرکوب این حزب کردند. اگر این جنبش مولانا سندی رحمه‌الله که هدفش آزادی وطن بود، پیروز می‌شد، پاکستان چندین سال قبل از سال ۱۹۴۷م. به‌وجود می‌آمد.

با افشای نامه‌های مولانا سندی، مولانا لاهوری دستگیر و از دهلی به بازداشتگاهی در «شِملا» انتقال داده شد. مسئول بازداشتگاه شِملا از حُسن اخلاق و رفتار ایشان به‌قدری متأثر شده بود که در حد توان خود اسباب آسایش و راحتی را برای ایشان فراهم می‌کرد و علاوه بر امکانات رفاهی مناسب، برخی نیازهای ایشان را از خانه‌ی خودش برای مولانا لاهوری فراهم می‌کرد.



مدتی بعد مولانا لاهوری رحمه‌الله از شِملا به لاهور و سپس به «جالندَر» منتقل شد. مولانا غلام‌محمد دین‌پوری نیز به همین اتهام اسیر و به آنجا آورده شد.

مولانا لاهوری پس از مدتی حصر- در منطقه‌ی «راهون»، به لاهور منتقل شد. یک افسر پلیس اطلاعات (CID) به ایشان گفت دولت برای فرستادن شما به ایالت سِند یا شهر دهلی آماده نیست و از این بابت اطمینان ندارد، بنابراین شما باید در لاهور اقامت کنید. برای تحقق این امر نیز ایشان را ملزم کردند دو ضامن بیاورد که هر کدام هزار روپیه به عنوان ضمانت پرداخت کند.

مولانا لاهوری با این استدلال که در لاهور آشنایی ندارد، درخواست کرد به ایالت سِند منتقل شود، اما دولت موافقت نکرد؛ ایشان پس از تلاش فراوان نام مولانا قاضی ضیاءالدین (از دانش‌آموختگان دارالعلوم دیوبند و مدیر دبیرستان اسلامی گوجرانواله) را به یاد آورد که آن روزها در لاهور مقیم بود. پس از ملاقات با ایشان و با یک واسطه‌ی دیگر، تلاش‌های زیادی صورت گرفت تا اینکه دو ضامن مهیا گردید.

## سکونت در لاهور

مولانا لاهوری وقتی بالاجبار در لاهور ماند، به مشکل توانست کسی را پیدا کند که ضامن ایشان بشود تا از قید حکام استعمارگر نجات بیابد، اما در سال‌های بعد به برکت خدمات علمی و دینی‌شان کل شهر و بلکه آن سامان گرویده و دلداده‌ی ایشان شدند.

ایشان پس از اقامت در لاهور درس قرآن مجید را آغاز کرد و به تدریج با کمک و لطف دوستان برای نشر- علوم قرآنی و پیشرفت اسلام، انجمن «خدام‌الدین» را پایه‌گذاری کرد و خود ایشان به عنوان رئیس انجمن انتخاب شد. از طرف این انجمن هفته‌نامه‌ای دینی به نام «خدام‌الدین» منتشر- می‌شد که تا به امروز نیز با مطالب علمی و دینی مشغول خدمت به جامعه است.

ایشـان در لاهـور مدرسـه «قاسم‌العلوم» را تاسیس کرد که فارغ‌التحصیلان مدارس عربی و علمای بزرگوار برای شرکت در دوره تفسیر راهی این مدرسه می‌شدند. به تدریج شهرت این دوره‌ی تفسیر مرزها را درنوردید و علمای دانش‌آموخته از دارالعلوم دیوبند، مظاهرالعلوم سهارنپور، مدرسه امینیه دهلی و مدرسه شاهی مرادآباد برای کسب فیض از این چشمه نورانی می‌آمدند. این دوره‌ی ویژه از اول رمضان تا آخر ذوالقعده برگزار می‌شد که تا پایان عمرِ مولانا لاهوری ادامه داشت.

سند و گواهی شرکت در این دوره‌ی تفسیر به امضا و تائیدیه علامه محمدانور شاه کشمیری، علامه شبیر احمد عثمانی و مجاهد اسلام مولانا سید حسین‌احمد مدنی رحمهم‌الله مزین است.

مدرسه قاسم‌العلوم پس از رحلت مولانا لاهوری، توسط فرزند ایشان مولانا عبیدالله انور رحمه‌الله تا ۱۴۰۵ هـ.ق مدیریت شد. اقامتگاه طلاب در آغاز کار، ساختمانی اجاره‌ای بود و کمبود فضا و مشکلات به‌وجود آمده باعث شد در منطقه‌ی «سبحان‌خان» قطعه زمینی خریده شود. کلنگ احداث مسجد و مدرسه توسط علامه شبیراحمد عثمانی در محل جدید زده شد.

## حق‌گویی؛ ویژگی بارز مولانا لاهوری

مولانا احمدعلی لاهوری امانتدار ۲۵ساله‌ی اسرار «جنبش آزادی هند» بود. در مصیبت‌های ملی کنار ملت بود. سختی‌های حبس و زندان را به جان خرید. این مرد آزاده همواره حرف حق را بر زبان می‌آورد. همیشه بر عمل به قرآن و سنت اصرار داشت.

اگر حکومتی طاغوتی فتنه‌ای شروع می‌کرد، جواب دندان شکنی به آن می‌داد.

در مقابل صاحبان قدرت از گفتن کلمه حق ابائی نداشت؛ به همین دلیل چندین بار ممنوع‌البیان شد.

در سال ۱۹۳۱م. رئیس دانشگاه مهندسی لاهور که فردی انگلیسی بود، جملات زشتی در مورد رسول‌الله صلی‌الله‌علیه‌وسلم گفته بود که مولانا لاهوری با تمام جرأت علیه او موضع گرفت و نعره‌ی مستانه‌ی کلمه حق را سر داد.

ایشان به‌خاطر این حق‌گویی دستگیر شد، اما پس از مدتی حکومت وقت از کرده‌ی خود پیشمان شد و ایشان را با عزت آزاد کرد.

## خدمات علمی

تمام زندگی مولانا لاهوری وقف خدمت به اسلام بود. ایشان در طول عمر بابرکتش در کنار تدریس تفسیر کتاب الله و سنت رسول‌الله و تزکیه باطنی، قرآن را به صورت کامل به زبانی روان به اردو ترجمه نمود.

علاوه بر این، تالیف و تصنیف ۳۴ کتابچه از دیگر خدمات ایشان به محافل علمی و جامعه مسلمان است. "تذکره رسول"، "اسلام مین نکاح بیوگان" (ازدواج زنان بیوه در اسلام)، "ضرورة‌القرآن"، "اصلی حنفیت"، "رسول‌الله صلی‌الله‌علیه‌وسلم کی وظائف"، "میراث مین حکم شریعت"، "توحید مقبول"، "فوتو ]عکس[ کا شرعی فیصله"، "صد احادیث کا گلدسته" و "فلسفه روزه" را می‌توان از آثار ایشان نام برد.

## مولانا لاهوری از نگاه علامه ابوالحسن ندوی

اندیشمند و مفکر برجسته‌ی معاصر، علامه ابوالحسن علی ندوی رحمه‌الله روابط صمیمانه‌ای با مولانا لاهوری داشت. در باب عرفان و تزکیه به‌طور ویژه از

محضر ایشان بسیار بهره برده است و به توصیه‌ی ایشان با مرشدش شیخ غلام‌محمد دین‌پوری بیعت کرده بود.

علامه ندوی در مورد مولانا لاهوری می‌فرماید: «مولانا احمدعلی لاهوری طی نامه‌ای به بنده توصیه کرد که از منهج و روش علمای دیوبند هرگز برنگرد.

ایشان از علمای دیوبند بسیار متأثر بود. خصوصا در این اواخر با مولانا مدنی بسیار هم‌عقیده شده بود، سند دوره‌ی تفسیر بنده به دست ایشان تقسیم شد. مولانا لاهوری اگر جایی تشریف می‌برد به کسی اجازه استقبال نمی‌داد. گاهی این طور می‌شد که مردم در ایستگاه راه‌آهن منتظر ایشان بودند، اما مولانا به‌طور پنهانی از آنجا خارج می‌شد و نزد میزبان خود می‌رفت.

هر جا با هزینه شخصی خودش سفر می‌کرد و سفرهای تبلیغی نیز انجام می‌داد. بنده در درس حجة‌الله‌البالغة ایشان نیز شرکت کردم.

در درس تفسیر، خلاصه‌ی هر رکوع را تدریس می‌فرمود و طلاب باید یاد می‌کردند؛ این خلاصه‌ها را مولانا سِندی بیان کرده بودند.

در پرتو تحولات سیاسی آن دوران درس می‌داد و راهنمایی‌های قرآن برای آن زمان را بیان می‌کرد.

به ربط بین آیات توجه ویژه‌ای داشت. بیان عقیده‌ی توحید و تعلق با خداوند، عشق نبوی، اخلاص و تزکیه‌ی نفس ویژگی‌های بارز درس تفسیر ایشان بود.» (مجالس حسنه)

## بعضی از اقوال زرین ایشان

– مقصد و هدف در هر کار، حاصل‌کردن رضای الهی باشد.

– شرح قرآن مجید و احادیث نبوی در دو جمله امکان پذیر است؛ خدا را عبادت کن و خلق خدا را با خدمت راضی کن.

– قلب هر چند سخت باشد، با ذکر متواتر و پی‌درپی خداوند نرم می‌شود. همان‌گونه که سنگ سخت با قطره‌های آب تغییر می‌کند.

– استقامت بر دین طلب کن، کرامت نخواه، چراکه درجه استقامت از کرامت بیشتر است.

– آن نور گران‌بهایی که از کفش‌های اولیاءالله حاصل می‌شود، در خزانه‌های پادشاهان یافت نمی‌شود.

## سفر آخرت

این مرد درویش در ۱۷/ رمضان/ ۱۳۸۳ هجری قمری در روز مبارک جمعه دعوت حق را لبیک گفته و دار فانی را وداع گفت. هزاران نفر در نماز جنازه ایشان شرکت کردند و در قبرستان «میانی» به خاک سپرده شد. تا چندین سال از آرامگاه ایشان بوی خوش بهشت به مشام می‌رسید.

منابع:


ـ بخاری، اکبرشاه؛ اکابر علماءِ دیوبند؛ لاهور، اداره اسلامیات؛

ـ ندوی، ابوالحسن؛ مجالس حسنه؛ لکهنو، اداره احیای علم و دعوت.



لیکنه - خالد منهاج

# د وخت ناهده

## د سترګو تور استشهاد ته لېږي

په اسلام کې د ناهدې او ملالۍ غونډې له غیرته ډکې مینـدې لا نـه دي شنډې شوي ، اسلام تر اوسـه لـه داسـې مینـدو بـرخمن دی چـې پـه سپېڅلې احساس یې چاته د صحابه کرامو رضی الله عنهم زمانه یـادیږي ، هو که د عبـدالله ابـن زبیـر رضـی الله عنه مور اسماء رضی الله عنها خپل د زړه ټوټــه (زوی) عبــدالله (رض) لــه ورکتوبــه دبتــه هڅــاوه چــې لــه مجاهــدینو سره ووځــي ، ځــان لــه سختیو سره عـادت کـړي ، د الله (ج) د دین د ساتنې لپاره پـر نـازک بـدن زخمونه وخوري او پـه دې لاره کـې د شــهادت ویــاړ تــر لاســه کــړي ، لله الحمد نن هم مؤمنان اسماء (رض) ته ورته له جرئت او ایمانه ډکې مینـدې لري.

کــه صــحابیاتو (رض) خپلــو بچیانو ته شجاعت ، بـرم او شـهادت خوښـاوه ، نـو نـن هـم پـه اسلام کې داسـې مینــدې شـته چـې خپـل د سترګو تور (زوی) ته پـه دیـن ننـګ ، زخم او سختئ ګالل خوښـوي حتـی استشهاد ته یې لېږي چې د دین د دفاع په موخـه یـوازې لمبه ، لخړه او لوګی شي سبحان الله.

یوه مجاهد ملګري مې راته قیصه کوله :

ها بلـه ورځ د تـرور (خالـه) کره لاړم چـې د اسـلامي اخوت ، قرابت او حقوقو له مخې یې د کورنۍ حال احـوال واخلم ، د روغ ناروغ پوښتنه یې وکړم او د ژوندانه پر چـال چلند او ستونزو هوارولو ورسره مجلس وکړم.

خو د تـرور هیبتـي احسـاس ، د جهـاد او استشـهاد سره بـې کچـې مینـې او پـاکې ارادې سـخت حیـران کـړم. ترور مې یو د سترګو تور او د زړه قرار (خوان زوی) لري چې د الله (ج) د رضا په خاطر یـې د الله (ج) دین ته وقف کړی ، د قرآن کـریم حفـظ یـې پـه کـړی او دا مهـال پـه یـوه دینـي مدرسه کې اسلامي تعلیمات کوي.

دا چې دوی ما د مجاهد او طالب په نوم پېژني ، له جهاده مې خبر دي او زمـا کشـر ورور د جهاد په لار کې په شهادت رسېدلی ، نو ترور مې راته کړل :

چې زما بچی هم درسره بیایه ، جهاد ته یې ترغیبوه ، د مجاهدینو خدمت پـه وکـړه او زما دا لوی ارمان دی چې زما زوی د استشهاد برم تر لاسه کړي او بیا بیـا یـې راتـه ویـل چې زما د زړه ټوټه (زوی) د استشهادیانو کنډک ته بوزه !

زه په دې خوښه یم چې دی د الله پر دښمنانو فـدایي بریـد وکـړي او الله (ج) تـه پـه پارچې پارچې او سرو وینو ګلګون بدن ورشي !

سبحان الله زما د ترور په سپېڅلې فکر کې یوازې د جهاد ، شجاعت ، ننګ زخـم او استشهاد مینه وه ، د استشهادیانو او نورو غازیانو یې راته قسم قسـم لـه کرامتونـو ډکـې قیصې وکړې. نوزه که له یوې خوا زیات حیران خو له بلې خوا ډېر خوښ او مطمـئن شـوم چې لله الحمد زموږ د میندو ضمیرونه لا تر اوسه ژوندي او ویښ پاته دي.

دا تر لمر سپین حقیقـت دی چـې د مسـلمانانو مینـدې بالخصـوص د افغانـانو چـې عمرونه یې د غزاوو په ډګر کې تیر شول ، د غربي کاذب تمـدن ، فحشـا او تهـذیب څخـه نفرت لري ، دوی دلته د ساز او سروز پر ځای د قرآن کریم د تـلاوت او د الله (ج) د اذکـارو سره مینه لري، د دوی په رنګینو مجلسونو کې د کرکیټرانو او پوټوبالرانو منحوسه اتلـولي نه بیانیږي ، دوی دلته د حقاني اتلانو تاریخي کرامتونه او جهادي صوانح رایادوي ، دلتـه میندې یوه له بلې د زوی په زخمونو او شهادت غبطه کوي ، دلته په ښادیو او ودونو کې د ډمتوب او نڅا پر ځای د فدایانو او سـنګر د غازیـانو ترانـې رغیـږي او شـپې پـه سـجدو او عباداتو رڼیږي ، د دوی بچي په شیطاني چهره ، خریلې رېره ، نیکټایې پر غاړه او ببر سر نه دي ملوث ، د دوی بچي په سنت لباس مزین ، تورزن او شملور دي.

# ګلځونه

## ازادۍ نشته
### په خوله لاس کېږ ده

#رحماني

د ژوند حیصه به درته نیمه کړمه
غوږ شه دا یوه خبره سپینه کړمه
ازادي نشته په خوله لاس کېږ ده
او پري درنه ډېره پاس کېږ ده
دا ازادي ده چې لښکرې ګرځي
یا په مو حریم هلیکوټرې ګرځي
دا ازادي ده کا دا ګل ورانه وي
کله زابل، کله کابل ورانه وي
زه خو هیران یم ازادي چیرته ده
ولچک لاسو کې خپلواکي چیرته ده
دا چې ضمیر مې غلامې نه مني
د انسانانو بندګې نه مني
په دي تورن یم چې ایمان لرمه
دومره غیرت لرم نشان لرمه
دا د محمودي غزنوي کور ده
دا د اکبر د ابدالي کور ده
دلته ملاله ، زرغونه انا ده
ماته رینښتنې پښتنه انا ده
ورشه میوند کې څه غوښتنه وکړه
له مکناتړن نه يې پښتنه وکړه
دا د زمرو د جګو غرو وطن ده
دا د باتورو توریالیو وطن ده
خو اوس څه نشته د لمانځنې په نوم
د خوشحالۍ د راکونې په نوم
بس ازادي وه چې په کډه لاړه
سپینه کوتره وو چې ګوډه لاړه
بس رحماني د سپینې سولې ناري
له ماتو خولو مو وځي نوري ناري
ربه! رحیم يې مهربانه خدایه!
وینه تویږي مې ارزانه خدایه!

# رضوان الله (فیضاني)

## کندوزه!!!

د مظلوم په وینو رنګې شولې کندوزه
ټول زخمي زخمي په جنګ شولې کندوزه

شهیدان درکې ټوټې ټوټې پراته دي
سم خوشبو لونې لونې شولې کندوزه

بیا دوهمه کربلا شوه درکې جوړه
په بمونو باندې رنګې شولې کندوزه

د شهیدو ارمانونو هدیره شوې
د خوږمنو زړو اهنګې شولې کندوزه

رب دې واخلي ستا معصوم معصوم عرضونه
خوار او زار لکه ملنګې شولې کندوزه

انتقام دې پر مونږ ټولو باندې فرض دی
پر مؤمن ولس قلنګې شولې کندوزه

درد بدلی خوږمن زړه به مې ټکور شي
که ظالم ته د مرګ کړنګې شولې کندوزه

( فیضاني ) درباندې ویاړي پر مونږ ګرانه
د خالد د تورې شرنګې شولې کندوزه



## سپین کاروان

**نصیر اشنا**

څومره ښایسته دغه زلمي ښکاري
ورو غرو کې سم لکه زمري ښکاري

کور د ملالۍ کې را لوی شوي دي
ګوره دا بچي د ابدالي ښکاري

نه کړي جنګو په شانته ژوند په کور
دا راته سړیو کې سړي ښکاري

دا ببر سرونه لیونو په شان
دا سپیڅلي عشق کې خماري ښکاري

دانګي سرو اورونو ته خدای مینه کې
مینه یې را ته پاکه خلیلي ښکاري

ورځي چې جنګ ډګر ته په مستۍ مستۍ
نښې د جنت یې په تندي ښکاري

ځای پر ځای توتې یې چې صلیب کړلو
دغه سپین کاروان را ته مهمدي ښکاري

روان نصیر اشنا دي پرمختګ په لور
هر طرف زېري د بري ښکاري

## د انقلاب ګل

ستا په دین باندې یې ورکړ د شباب ګل
خدایه ورکړې په عوض کې د ثواب ګل

بیا په زړونو کې پرېمانه ازغي مات دي
پاڼې پاڼې دی د مینې د ګلاب ګل

په روزګان کې د خزان سېلۍ وهلی
شهید شوی دی پرون د ارغنداب ګل

درغلی دی زمونږ له چم نه تږی
په رحمت دې خدایه پاکه کړه سېراب ګل

د کرم معامله ورسره وکړې
مه یې نیسې په یوه څه وخت اضطراب ګل

هسې نه چې ازغي ونیسي وختونه
هره ورځ را څخه اخلي انقلاب ګل

## عادلانه الهي ویش:

د ښځې مینه او عاطفه د سړي له ځواک او قوت
نه پیاوړې ده، خو د سړي څاڅکی او ښکي د ښځې
له پوره یو سیند او ښکو نه ارزښتناکي دي.

# دولتي عسکر

## د طالبانو غیږې ته ولې پناه وروړي؟

لیکنه: محمدعلي عمري

دا پـه تجربـه ثابتـه شـوې ده هـر وخت چې د دښمن پـه دې سر خلاص شي، چې نور له خپل مخالف قوت سره جنگ نـه سم کولای نو بیا یاتښـتي او یـا خپـل مخـالف ځواک ته تسلیمیږي.

مونږ ولیدو چـې د افغانستان پـه بـېلا بېلـو ولایتونو کې دولتي عسکر له طالبانو سره یوځای شول او دا لړۍ بـه نـوره هـم تېـزه شي، ځکه اوس د افغـان عسـکرو پـه دې باندې ښه سر خلاص شوی دی چې مـونږ د امریکـې دپـاره جنگیـږو، د امریکـا لـه لوري مونږ تـه تنخـواه یـا معـاش راکـول کیږي او بل سبب یې دا دی چې په افغـان پارلمـان کـې همـدا رنگـه د غ او ع پخپـل میـنځ کـې سـخت اختلافـات او نـه هـم آهنگي ددې سبب شوې ده، چې عسکر لـه طالبانو سره یوځـای شي او ترټولـو اصـلي وجه د عسکرو تسـلیمي وطالبـانو تـه لـه دې کبله دا تسلیمي زیاتـه شـوې چـې پـه کندز، هلمند، کنـدهار، زابـل او یـو شـمیر نورو ولایتونو کې طالبانو پـه جنـگ کـې زیات شمیر پرمخ تللې امریکـایې وسـلې ترلاسه کړې.

دغـو وسـلو د طالبـانو صـفوف او مـورال قـوي کـړل او هـر څـوک ښـه پـوهیږي، چـې جنـگ پـه مـورال سره کیږي. مخکې خـو بـه لـه عسـکرو سره امریکا یې پرمخ تللې وسلې وې، طالبان به په کلاشینکوف ورسره جنگیدل، ځکه خو د عسکرو مورال ډیر قوي و اوس چې نوې وسله د طالبانو لاس ته ورغله اوس عسکر وپوهیدو چې نور نـه شـو کـولای چې له طالب سره وجنگیږو.

ځکـه دا اوس مـونږ وینـو طالبـان چـې پـر یـوه ولسوالۍ حمله وکړي نـو پـه ډیـر لـږ وخـت کـې هغـه ولسوالۍ ټولـه تـر خپـل واک لانـدې راولي او بلـه دا چـې اوس د طالبانو پرضـد امریکـایي الـوتکې بمبـار نـه کـوي آن که په زرهـاو افغـان ځواکونـو تـه مرگ ژوبله واړول شي، د طالبانو د پرمخ تگ مخه اصلا امریکایي بنگنو او بې پیلوټـه الوتکـو نیولې وه اوس دغـه الـوتکې پـه پراخـه کچـه او عمـلا امریکـا نـه کـاروي او داسـې ښـکاري چې امریکا اوس له افغان حکومت څخه سخته ناراضه ده، ځکه مونږ ولیدو کلـه چـې د تـورخم پر پوله له پاکستان سره افغانستان شخړه وکړله، شپږ اوه کسه په دې جگړه کـې دواړو خـواوو ته مړه شول، امریکا هیڅ هم ونه ویل حال دا چې له افغانستان سره یې امنیتـي تـړون لاسـلیک کړی و او په امنیتي تړون کې دا راغلي وو چې پر افغانستان برید پر امریکا برید دی.

اصلي خبره داده چې داسې ښکاري چې طالبان اوس په یو نوي قوت او نوې تجربه سره په یـوه داسې جنگ کې ښکېل دي، چې ددوی په گټه دی او د ملي عسکرو یوځای کېدل لـه طالبـانو سره دا په ډاگه کوي چې طالبان اوس په خبري یعنې د میډیا په برخه کې ډیر پرمختللي دي.

لنډه دا چې اوس به د څو میاشتو په تیرېدو سره ډیر ستر بدلون رامینځ تـه شي او پـه ډیـر زیات شمیر عسکر به له طالبانو سره یوځای شي، ځکه هر وخت چې یو عسکر طالبانو ته تسلیم شي نو ویډیو یې ټول جهان د انټرنټ له لارې ویني، چې طالبان وتسلیم شـوي عسـکر تـه هـار ورپه غاړه کړي او ډیرزیات په خوشحاله شي.

دغه خوشحالي چې نورعسکر وگوري نـو سمدلاسـه یـې وتسـلیمۍ تـه شـوق وشي، څـو ورځې وړاندې مونږ ولیدو چې یوه افغان سرتیري پر امریکـایي ځواکونـو د خپـل ټوپـک خولـه راوگرځوله او ٦ امریکایان یې تقریبا مړه کړل، دېته ورته پیښې په وار وار رامینځته شوې دي، چې عسکرو پر خپلو ملگرو او یا امریکایي ځواکونو خونړۍ حملې کړې وې.

اوس امریکایان پرځای ددې چې له طالبانو وډاریږي، له ملي اردو او عسکرو څخه سخت ډاریږي داسې ښکاري چې طالبانو اوس عامه بین الافغاني محبوبیت تر لاسه کړی دی او نژدې ده چې دا محبوبیت به نورهم زیات شي.

# یاربه بې طالبه مو نه کړې!

#جواد ځارکګر

یوه عدلي رئیس له یوه هلکه د دریو سوو افغانیو پر بدل د لواطت غوښتنه وکړه.

یوه قومندان د خپل عسکر ښځه وتښتوله، تر اتیاو ورځو یې په شخصي- زندان کې زنا ورسره وکړه او بالاخره یې له عسکره وغوښتل چې ښځې ته طلاق ورکړي او ده ته یې پرېږدي.

یوه اربکي قومندان د ښوونځي یو زده کوونکی د ټولو زده کړیالانو او ښوونکیو پر وړاندې لوڅ لپړ کړ، جنسي- تېری یې پر وکړ او بیا یې انځورونه ترې واخیستل.

د نن ورځې یو راپور دی چې تازه رسنیز شوی؛ د غزني د ولایتي شورا یوه غړي 'عبدالجامع جامع' یوه پیغله نجلۍ تښتولې، ۸ شپې یې پر خپل شخصي- دفتر کې ساتلې او پس له هغې یې خپل یوه باډیګارډ ته په زوره نکاح کړې.

دا هر څه په کوم جنسي بازار کې نه دي انجام شوي او نه د کوم هیرابازار کیسه ده، بلکې دا هر څه په یوه نظام کې ترسره کېږي، د نظام خلک یې ترسره کوي، د نظام د رأس خلک یې تر شاه ولاړ دي او پر ملا یې ټپوي او همدې فحشاء او منفوره اعمالو ته یې هڅوي ترڅو افغاني ټولنه د غرب په څېر فاسده کړي.

تر دې وړاندې دې ته ورته بلها پېښې رامنځ ته شوې. یوې ښځې په ډک بازار کې لوڅ لپړ قدم وواهه، یوې بلې ښځې سینو او خلفي حصې ته اوسپنزه زغره واچوله او په ټول بازار کې وګرځېده، یو بل سړی بازار ته لنډه غر ووت، نه یې پر بدن تار و او نه د چا سره کار، بس محض د افغانانو د ایمان دمعیار معلومولو لپاره یې یو ازمایښتي تمرین وکړ.

د عدلیي رئیس تر شاه منظم باند لري، پولیس قومندان په سازشي او قصدي ډول دغه عمل ته هڅول شوی او اربکی قومندان چې پر پتمنه افغاني ټولنه کې دومره ستر جرأت او اجرآت کوي، طبعي ده چې تر شاه یې ستر او اوږده لاسونه تکیا دي.

په کابل کې 'خانه امن' سوچه فحشاء خپروي، لسګونه نجونې او هلکان فحشاء ته د ترویج پر موخه روزي او بیا یې په بازارونو کې په مختلفو پلمو او حیلو لر- بر کوي.

د کابل په زړه کې لسګونه داسې هوټلونه شته دی چې ډمتوب ورکې کېږي او خپلو ګاهکانو ته د زنا لپاره نجونې عرضه کوي.

دا څه روان دي او د څه لپاره روان دي؟ شپه او ورځ د اخلاقي بې‌لاریو لپاره ولې رسمي کمپاینونه کېږي؟

په تلویزونو کې داسې سریالونه د څه لپاره نشرېږي، چې تنکي هلکان سکس او بې‌لارۍ ته هڅوي؟

فقط ددې لپاره چې دغرب ناوړه او بې پدره فرهنګ ته په مسلمانه او افغانه پتمنه ټولنه کې ترویج ورکړي.

ګناه زمونږ خپله ده چې تش کالبوتونه او غربي روبوټونه مو په اوږه کړي، نه یې اسلامیت څرګند دی، نه افغانیت او نه اصالت؛ بس همدومره یې پېژنو چې له غربه راوستل شول او زمونږ پر اوږو یې کښېنول.

باور وکړئ که دا یو څو تنه سرسپارلي مجاهدین مو له منځه نه وای پورته شوای؛ نن به مو هره پېغله سرتوره وه، هر پېی مخ هلک به ددې نظام شامل خلکو د خپل هوس ښکار کاوه، هر کور به د ګواښ لاندې وای او هره دروازه به د جنسي- خواهش د لیونیانو تر ځار لاندې وه ځکه په جار نعرې وهو چې 'یاربه بې طالبه مو نکړې'.

# طالب ژورنالستان

## د جګړې له ډګره ...!!

#م فرهاد

له کله نه چې امریکایانو پـر افغانسـتان بریـد وکـړ د پوځي یرغل ترڅنګ یې مطبوعاتي جګړې ته هم زور ورکـړ ، تردي چې په لومړیو کې یې په الوتکو کې ګرځنـده راډیـویی سټیشنونه او په خپلو بیسونو کې ځیني ایف ایم دسـتګاوي عیاري کړي ، له هغوی نه به یې موسیقي ، ګـډوډ خبرونـه ، بې لارې ته هڅوونکي پروګرامونه او نور تبلیغات خپـرول ، چې ورو ورو یې چاپي رسنۍ ، ټلویزوني شبکې او انټرنیټـي پاڼې په بیلابیلـو نومونـو خـلاصي کـړي ترڅـو د جهـاد او مجاهدینو پرخلاف د خلکو اذهان پخپله ګټه جوړ کړي او په ترڅ کې یې خپل یرغل افغان ولس ته داسي وروپیـژني چـې ګویا دا د دوی (افغانانو) پخیر دی.

هغه خلک چـې لـه اشـغالګرو سره شـعوري جـوړ او ملګري ول ؛ او یا هغه خلک چې شعوري همـدردي خـو یـې ورسره نه درلوده ؛ مګر د دوی د ډالرو تږي ول ؛ هغوی له دې موقع نه پوره ګټه واخیسـته ، ډالـر یـې ترلاسـه کـړل خـو تبلیغات یې ټول د یرغلګرو او د هغوی د ګوډاګۍ اداري لپـاره کول. او لا لګیا دي ، کوي یې .

د اشغال په دا شپاړس کلنه دوره کـې امریکایـانو پـه افغانستان کې څه د پاسه ۱۲۳ ملیارده ډالره مصرف کـړل دا له هغه ۶۸۰ ملیارد ډالرو څخه عـلاوه دي چـې د امریکـایی فوځیانو پر عملیاتو لګیدلي ، بلکې دا هغه پیسـې دي چـې د بیا رغوني په نوم راغلي خو دلته د فکري یرغل لپاره تنها پـر تبلیغاتي رسـنیو مصرف شـوي دي. ځکـه چـې انکشـافي کارونه خو موږ او تاسو وینو چې یوه زیربینائي پروژه په دا یوه نیمه لسیزه کې نه ده تعمیر شوي ، نو واضحه خـبره ده چې همدا ډالر ټول د فکري یرغل لپاره وکـارول شـول او پـه ترڅ کې یې د کرپشن/ مالي اختلاس خوراک هم شول .

د بیلابیلو شمېرو له مخې له ۲۰۰۱م کال څخه تراوسـه پوري د بهرنیو ، خصوصاً امریکایي یرغلګرو په تمویل زیات وکم ۱۶۰۰ رسنۍ په افغانستان کې په فعالیت بـوختي دي چې په دې کې تر ۱۰۰۰ زیاتي چاپي ۲۰۰ شاوخوا راډیـویي ، د ۸۰ په شاوخوا کې ټلویزوني چینلونـه او د ۳۰۰ پـه انـدازه خبري آژانسونه او د کلتوري ودې پـه نـوم مختلفـې ټـولني فعالیت لري ، انلاین یا اینټرنیټي ویب پاڼي چـې معمـولاً لـه ۲۰۱۰م کال وروسته یې فعالیت زیات دود شوی ؛ شمېر یـې تر زرګونو هم اوړي . البته دا هغه دي چې ویل کیږي د کابـل اداري د رسنیو د مربوطه ارګان نه یـې د راجسـترۍ او ثبـت جوازونه ترلاسه کړي دي . هغه چې ناثبت دي او یا له بهره د امریکایي یرغل په ګټه تبلیغات کـوي ؛ شـمیر یـې نـور هـم زیات دی خو دقیق معلوم نه دی .

لنډه دا چې یرغلګرو د خپل ډالریز لګښت زیاته برخـه د فکري یرغل په موخه پر همـدې رسـنیو لګـولې ده . دا چـې لاسته راوړنه یې مثبته ، او که منفي ده ؛ د دې انـدازه هـم د لویدیځوالو له خپلو څرګندونو نه ښه کیدای شي . وړمه ورځ د ګارډین مشهوري ورځپـاڼې ولیکـل چـې : ( د افغانسـتان جګړه د امریکا لپاره تر ټولو ناکامه او اوږده جګړه شـوه، دا جګـړه چـې اوس یـې پنځلسـمه کـالیزه پـوره شـوه ؛ شـاوخوا ۲۳۰۰ امریکـایي سرتیـري پکـې وژل شـوي او ۶۸۶ ملیارده ډالر لګښت وربانـدي راغلـی؛ او بیـا هـم لـه پنځلسو کلونو وروسته کومه لاسته راوړنه نلري.

د امریکا د راپورونو له مخې له ۲۰۰۱م کال راهیسې طالبان اوسمهال د افغانستان ډېره خاوره په کنټرول کې لري او القاعده هم د افغانستان په ډېرو سیمو کې فعاله ده. د ښځو په وړاندې تاوتریخوالی تر پخوا ډېر شوی او د کوکنارو په کښت کې د پام وړ ډېروالی راغلی دی.) دې ته ورته نورو لویدیځو رسمي او غیر رسمي سرچینو تر دې هم ور آخوا مایوسانه اعترافات کړیدي . او د کار پوهانو له نظره هم چې وایی امریکایان او ناټویی متحدین یې په یو غیرمترقبه شکل له ډېر ناوړه تاریخی شکست سره د مخ کیدو په حال کې دي . دلایل به یې بل وخت پرخپل ځای را وسپړو .

### طالبان او رسنیز محرومیت

په هرصورت امریکایان چې په دا پنځلس کاله کې څومره د جنګي ستراتیژۍ پرمخ بیولو ته متوجه وو ؛ هم هغومره یې د آزادو رسنیو په نوم پر تبلیغاتي جګړه ډېر زور او مصارف وکړل ترڅو د آزادۍ غوښتونکو افغانانو په وړاندې بریا ترلاسه کړي .

ما برعکس په مقابل کې یې طالبان چې له هر پلوه یې له دښمن سره پرتله او موازنه ناشوني وه ؛ په تش لاس یې د هغوی مقابلې ته را ودانګل . د وسلو او پیسو د نه شتون ترڅنګ یې رسنیز وسایل هم هیڅ نلرل . او نه د آزادو رسنیو له قانوني آزادي څخه برخمن ول او نه په آزاده میډیا کې د امریکایانو له اجازې پرته څوک دې ته اماده وو چې د طالبانو یو معمولي خبر ، تصویر او یا ږغ واخلي .

په افغانستان کې چونکه راډیو ډېره اوریدله کیږي ورځپاڼې او تلویزونونه چندان لوستونکي او لیدونکي نلري . په راډیوګانو کې بي بي سي ، امریکا ږغ او آزادۍ راډیوګاني خورا شهرت لري ، دغو راډیوګانو د یرغل له لومړۍ ورځې ترننه د مجاهدینو پرږغ خپرولو او د خبر په اصلي شکل نشرولو مطلق بندیز لګولی ، په داسی حال کې چې د رسنیو د آزادۍ ډېردعویداران هم همدا خلک دي .

مګر طالبان له دې هرڅه محرومیت او بندیزونو سره سره په خورا میرانه او غیر مترقبه شکل د یرغل په وړاندې ودریدل تر دې چې پس له پنځلسو کالو نن هغوی یو نړیوال حیثیت غوره کړی او امریکایان له دومره سترو جنګي وسایلو او ستر میډیایي قوت سره سره د ماتي او شکست پر ستیج قرار لري .

### طالبان په میډیا کې څنګه راڅرګند شول؟

څرنګه چې طالبانو د جګړې په ډګر کې له اټکلونو زیات پرمختګ وکړ د ډېرو سترو قربانیو عالمي ریکارډ یې جوړ کړ ، دا راز یې په نورو برخو، لکه میډیایي میدان کې هم د نه وسایلو له ستونزې سره سره ؛ ډېره ستره کامیابي ترلاسه کړې ، نن سبا پر سوشیل میډیا / ټولنیزو شبکو ترهرڅه زیات فعالیت د طالبانو لیدل کیږي ، جهادي خبرونه ، سیاسي لیکنې ، دعوتي مقالې ، د علماؤو جهادي او اصلاحي موعظې ، د جنګ جګړو ویډیویې او تصویري صحنې دا راز نور هر ډول دعوتي مواد ، دوی د خپلو ویب پاڼو، ایمیلونو او بریښنایي پیغامونو ترڅنګ د خواله رسنیو له لارې ، لکه فیسبوک ، ټویټر ، ټیلګرام ، واټسآپ ، وائبر، انسټګرام ، یوټیوب او نورو ټولو چینلونو له لارې هیوادوالو او نړیوالو ته رسوي .

دا په داسی حال کې دی چې د الاماره ، الهجرة ، منبع الجهاد او تورې بورې په نومونو داسې ستوډیوګانې لري چې د هغوی له لارې په ډېر لوړ کیفیت دعوتي او جنګي ویډیوګاني او واړه کلیفونه تیاروي ، او بیا یې د فیتو ، سی ډیز ، میموریانو ، ویب پاڼو او نورو اجتماعي شبکو له لارې په شیبو شیبو کې ترخلکو رسوي .

د دې ترڅنګ د هغو هیوادوالو له لوري چې د اشغال مخالف دي خو په آزادانه ډول غواړي چې د اشغالګرو پرخلاف د هیواد د دفاع په لاره کې هلي ځلي وکړي ؛ هغوی هم په بیلابیلو نومونو خپلې آزادي ویب پاڼې ، چاپی رسنۍ ، او ټلویزوني پروګرامونه لري او نوري بلنیزي / دعوتي لاري چاري لري چې دوی هم خورا مؤثر رول لوبولی دی .

اما د طالبانو لپاره ترټول آساسي او اغيزمنـه د دعـوت لاره چې ده ؛ هغه په مساجدو کې د ديني علـماء کرامـو لـه لوري د خلکو پوهول دی ، د افغانستان خلـک چونکـه کلـک عقيدوي او روايتي مسلمانان دي ، او ديني علماء کرامـو تـه تربل هرچا ډېر احترام لري ؛ ترديچې که د نړۍ ټوله کفـري ميډيا په کلونو کلونو تبليغات وکړي ، بيـا هـم د افغانسـتان خلک د جوماتونو د ملاامامانو په يوه خبره د نړيوالـو ټـولي هلي ځلي له خاورو سره خاوري کولای شي .

ښه مثالونه يې زموږ او ستاسو پـه وړانـدي دي، چـې روسانو او امريکايانو دواړو خپـل ټـول تـوان وکاراوه خو د گوتو په شمېر انسـانان يې ذهناً خپلي تگـلاري تـه مايـل نکړای شول . بـرعکس د علـماء کرامو پـه دعـوت او لارښـوونه افغانانو په تـش لاس د هغـوی (روســـانو+امريکايانو) پـــه وړانـدي جهـاد تـه را ودانگـل او دښمن يې له يو بدترين شکسـت سره مخ کړ .

نو د طالبانو د دعوت تر ټولو ستره او مـؤثره وسـيله همدا ده . چې دښمن په هرصورت ورڅخه محروم دی .

## د جگړي له ډگره واقعيتونه

که څه هم پر طالبانو اوس هم د نړيوالو يرغلگـرو پـه اشاره د ميډيايي محروميت او کنټرول هڅي په تينگه جريان لري ، خو بيا هم طالبانو خپل دعوتي او ميـډيايي فعـاليتونو ته ښه زور ورکړی دی ، تر دې چې په دې وروستيو کې چـې په هيواد کي د مجاهدينو له لوري پر امريکايانو او د هغـوی پر داخلي متحدينو جگړو شدت اختيار کـری ؛ او ميـډياوال د جنگ له صحنې ليري فقط د چارواکو د خبرو په استناد غير معياري راپورونه خپـروي ؛ بـرعکس طالـب ژورنالسـتان د جنگ جگړو ژوندي صحنې په مستندو ويډيويي کليفونو کې خلکو ته وړاندي کوي .

په هلمند او روزگان کې چې د دواړو ولايتونو مرکزونه طالبانو کلک محاصره کړل ، او دې ته يې نژدې کړل چې هــر وخت وغواړي سقوط ورکولای شي ؛ نوري ميډيا يې پـه اړه ډېر ناسم تصوير خلکو ته وړاندي کاوه ځکه چې د جنگ لـه صحنې ليري، د حکومتي چارواکو نظرونو ته به يې انعکاس ورکاوه ، اما د طالب ژورنالستانو ټيمونه هلته د جگـړې لـه ډگره ژوندي راپورونه ورکول ، د اسد افغان په نوم له هلمنده د الاماره سټوډيو او الاماره ويب پـاڼې همکـار ځـو ورځـې مسلسل د جنگي حالت مستند ويډيويي راپورونه ورکـول ، چې خلک يې له شته صورتحاله خبرول .

ورپسې له روزگان ولايت نـه هم د زبير پـه نـوم د الامـاره سـټوډيو همکـار د جنـگ جگړو اصلي صورتحال پـه خورا دقيق ډول په ژونـدۍ بڼـه مـنعکس کـاوه ، چـې همــدا اوس اوس يــې هـــم ويــډيويي کليفونــه ، مرکــې او ليکلي راپورونـه پـر خوالـه رسـنيو او الاماره ويب پاڼه ترسترگو کيږي ، هغه صحنې چې د افغـان ځواکونو کنډکونو په ټوليز شکل طالبـانو تـه تسـليمېږي او هغه جنگي وسايط ، وسلې او مهمات چې مجاهدينو ته پـه لاس ورځي او دا راز د سـيمي د خلکـو غبرگونونـه چـې لـه مخکنـي او وروسـتي حالتـه يـې څرگنـدوي او يـا د طالـب قوماندانانو سره مرکې وي ؛ دا هرڅه په هغه بڼه خلکـو تـه رسـوي چـې د فعـالو سـپوږميزو چينلونـو تربيـه شـوي خبريالان يې هم دا ډول نشي خپرولای.

له هغې وړاندې د کندز د جگړې ژوندۍ او گام په گـام صحنې خپرول او د بغلان په ولايت کـې د پرمختگونـو تـازه ويـډيويي کليپونـو او د فـراه څڅـه د جگـړې ويـډيوي يـې راپورونو خپرولو هم خلک او مقابل جانب حيران کړي ول .

## د طالبانو ویب ادرسونه چا هیکل کړل ؟

د جنګ جګړو ریښتیني تصویر وړاندي کول او پــه دلــه ایزه توګه د ملي اردو او پولیسو د کنډکونو د تسلیمۍ پیښــې خلکــو تــه څرګنــدول ؛ د کابــل اداري او د هغــوی خــارجي متحــدینو تــه د زغــم وړ نــه وي ، دا راز هغــه تبلیغــاتي (پروپاګند) راپورونه چې د کابل اداري له لوري پــه طالبــانو پسې د معمول په شکل خپریږي او طالب ویندویانو بــه یــې هغه ټول تبلیغات په مستند شکل وخت په وخت دروغ ثابتــه ول ؛ ممکــن همــدا وجــه وه چــې د کابــل اداري چــارواکو د طالبانو ځیني انټرنیټي ویب ادرسونه او د دوی د ویاندویانو ټولنیز اکاونټونه د یرغلګرو په مرسته ریپورټ کــړل او هغــه یې بند کړل ، دا ځکه چې دوی یې له نشراتو خــورا پــه تنــګ شوي دي ، د کابل د اداري لپاره پروپیګنډه کوونکي میدیا پــه ټول توان سره هڅه کوي ترڅــو د مجاهــدینو د پرمختګونــو خبرونه پټ کړي ، هغه صحنې او خبرونه چې افغان عســکر په جوپو جوپو طالبانو ته تسلیمیږي ؛ د کابــل میــډیا یــې د پټولو ډېري هڅې کوي .

د کابل اداري تر حمایې لاندي میډیا اوس فقط او فقط د مجاهدینو پر خلاف پروپاګند کوي ، هغه چې لــه واقعیــت سره بلکل منافي وي ، روزمره خبرونه ورکوي چــې طالبــانو له افغان حکومت سره پټې خبري وکړي ، د طالبــانو تــرمنځ اختلافات دي ، طالبان پر څو ډلو ویشل شوي دي ، طالبــانو ښوونځي او سړکونه وران کړل ، طالبــانو ملکــي خلکــو تــه زیان ورساوه ، طالبانو خپل منځي نښتې کړي دي ، طالبــان د پاکستان لپاره جنګیږي ، طالبان تجهیزات نلــري ، طالبــان داسی شول او طالبان هسې شول ،،، دا او دې ته ورتــه ټــول خبرونه د کابل میډیا خو نشروي اما لــه واقعیــت سره هــیڅ سر نه خوري ځکه چې دوی پروپاګند کوي چې پــر حقیقــت بنا نه وي .

ولي طالب خبریالان بیا چې څه وایی ، څه لیکي او څــه ناڅه پیښې په ویډیویی او مستند شکل وړاندي کوي ؛ هغــه ټول خلک پخپلو سترګو ویني . چــې لــه پروپاګنــد پرتــه پــر واقعیتونو بنا وي .

د بیلګې په توګه د هلمنــد ، روزګــان ، کنــدوز ، فــراه ، بغلان او نورو ځایونو په جګړو کې چــې څــه پــیښ شــول ، څومره عسکر ووژل شول ، څــومره عســکر تســلیم شــول ، څومره وسلې او مهمات طالب جنګیالیو ته په لاس ورغلــل ؛ او څومره وحشیانه بمبارونه چې یرغلګرو او د کابل اداري د ولسي خلکو پر کورونو او ځایونو وکړل ؛ او څــومره تلفــات یې ملکي خلکو ته ورسول ؛ دا ټول واقعیتونه دي چې د کابل میډیا هیڅ اشاره ورته نه ده کړي ، مګر طالب خبریالانو چې څه ناڅه پیښې وښودلې ؛ هیڅ یوه یې هم دروغ نــه ، بلکــي واقعیتونه وو .

### پایله

څرنګه چې د بهرنیو اشغالګرو په مقابل کــې طالبــانو په نظامي ډګر کې دا یوه نیمه لسیزه د ډېرو ســترو قربــانیو په ورکولو سره پــه ډېــر متانــت او میرانــه سره خــورا ســتر ریکارډ قائم کړ او د امریکا او ناټو پــه شــان نړیــوال پــوځي ځواک یې وننګاوه ؛ دا راز یې په میډیایی ډګر کې هم هغــوی وننګول ، دا ځکه چې یو طرف ته دومره پرمختللي وســایل او پریمانه امکانات ؛ ولي بــل طــرف تــه پــه تــش لاس مقابلــه کوونکي مجاهدین دي چې هیڅکله د پرتلې وړ نــه دي ، نــو دې ته په کتو سرې ویلای شي چې دا ډول ستره مقابله کول ، له شک پرته د طالبانو پر بریالیتوب او د هغوی د دښــمنانو پر شرموونکي ، تاریخي ماتې دلالت کوي . او طالبــان اوس سل په سلو کې په دې باور دي چې روانه مبــارزه نــوره دوی ګټلې ده. او دښمن ته یې شکست ورکړی دی . دوی هیله مند دي چې بهرني اشغالګر به نــور دا حقیقــت تســلیم کــړي او افغانستان به ترک کړي. طالبان پخپلــه مبــارزه کــې د الهــي نصرت او ولسي ملاتړ دخل ، د بریا آساسي عامل ګڼي.

پای



# له ازاره چا بازار موندلی نده

ليکوال مبارز افغان کتوازی

سپین ژیري پلار یې خدای ج ته په سجده شو له ډیرې ناامیدۍ یې غږ اوچت شو.

ویل یې خدایه زما زوی په غټ ماین ورسیخ کړه، چې د ورځې او شپې له څورونو یې نور خلاص شم.

هر وخت مې څوروي.

مور یې ورته وویل مه سړیه د هدایت دعا ورته وغواړه.

د سپین ژیري بابا سترګې اوښکلنې او په سپیره خوله ورته وویل:

زما دا څلورم کال چې د دې منافق زوی له لاسه څوریږم .

زوی یې د باندې د پلار خبرې اوریدلې وې.

سمدستي یې دروازه کلکه ووهله په زوره یې خلاصه کړه، پلار ته یې کنځلې بد رد وویل، پلار یې نور هم وځوراوو بد دعا یې ورته وکړې، بې ضمیره زوی.

په پلار یې حمله کړه سپین ژیري پلار یې له دیواله سره وواهه بې هوشه له ځانه ناخبره په وینو ککړ پر ځمکه ولوید!

مور یې له ډیرې مهربانۍ د زوی په پښو کې ورغړیده وایې غرق شوې زویه دا د څه وکړل!

بې وجدانه زوی یې مور هم ووهله مور یې سرتور سر په خاورو خړه په سرای کې د خپل زوی له لاسه بې ټیکرې ناسته وه.

ماشوم ورور یې چې د باندې یې لوبې کولې د مور چیغې یې واریدې په یوه ان یې ځان کورته راورساو، کله چې یې پلار په وینو لړلی بې هوشه لویدلی او مور یې سرتور سر د سرای په مینځ کې په ژړا ولیده نو یې خپل بې ضمیره ورور په کانې وویشت.

ورور یې ماشوم زوی د خپلې مور په مخ کې له ځمکی وویشت.

مور چې یې خپل ماشوم زوی ولید، خپل ناځله زوی ته یې بد دعا وکړه، چې ورځه په داسې بم برابر شې چه ټوټې دې هم ونه وینم.

زوی یې له کوره ووت.

په شین رینجر کې کیناست پوستې ته لاړ.

له پوستې امر ورته وشو چې فلانکې کلي ته په گزمه ځوو.

روان شول پنځه میله لا نه وو تللي چې په یوه کنده کې په خښ شوي ماین وربرابر شول.

له خپلو اوو ملګرو سره یې غوښې ګډې شوې.

یقیني چې مور او پلار یې بیا ټوټې هم ونه لیدې.




# د پنځلس کلن اشغال ناورینونه!

پنځلس کاله وړاندې د ۲۰۰۱ ز کال د اکتوبر په اوومه نېټه امریکا او ناټو پر افغانستان باندې د بي ۵۲ الوتکو او کروز توغندیو په واسطه د امنیت، ملت او دولت جوړونې د شعارونو په بدرګه کولو سره وحشي بریدونه وکړل. په دې ۱۵ کلونو کې افغانانانو خورا سخت کړاوونه ولیدل؛ جګړه او ناامني خورا زیاته او ځو اړخیزه شوه همدارنګه بې وزلي، وزګاري، بدلمني او بې حیایي زیاته شوه او خلک په ډېر ناوړه حالت کې له افغانستان څخه تېښتې ته مجبور شول. په دې سربېره د افغانستان له شاوخوا ۳۰ میلیوني نفوس څخه پنځه میلیونه افغانان چې یو میلیون یې مېرمنې دي او د ټول نفوس ۱۷ سلنه جوړوي په مخدره توکو روږدي شوي دي. له بل پلوه د افغانستان مخدره توکي د امریکا لپاره په نړیواله سوداګرۍ بدل شوي او نه یوازې دا چې افغانان یې پرې روږدي کړي دي، د نړۍ لسګونه میلیونه نور انسانان یې هم ورباندې روږدي کړي دي.

د جګړې او ناامنۍ پراخېدل: د افغانستان جګړه د امریکا له پولو بهر د امریکا تر ټولو اوږده جګړه ده. امریکایي او ناټو پوځیانو په خپلو وحشي پوځي بریدونو کې په سلګونه زره مسلمانان وژلي او ټپیان کړي دي. په همدې حالت کې د امریکا مزدورانو او کرایي کارپوهانو د ستراتیژیک او امنیت هوکړه لیک د لاسلیکولو لپاره داسې ډنډورې وهلې چې ګواکي دا تړون به خلکو ته امنیت، سوله او سوکالۍ راولي چې په دې سره یې په افغانستان کې د خپلو پوځیانو لپاره د قضایي مصؤونیت ترڅنګ د اوږدمهاله شتون جواز واخیست او د افغانستان په مختلفو سیمو کې یې نهه دایمي پوځي اډې جوړې کړلې. خو د دغه تړون له لاسلیک کولو وروسته، نه یوازې دا چې امنیت، سوله او سوکالي رانه غله، بلکې د پخوا په پرتله نا امني او بې وزلي لا زیاته شوه.

دا تر هر څه روښانه ده چې افغانستان د امریکا لپاره د یوې پوځي پروژې په توګه اهمیت لري. که څه هم د امریکا پوځي اقدامات لویې سیمه ییزې سیاسي موخې هم لري. مګر له دې سره ـ سره امریکا د افغانستان لپاره د رښتیني بنسټ جوړولو، د خلکو له واقعیت سره سم د مناسبې حکومتولۍ او د خلکو د ژوند د کچې د لوړولو هېڅ فکر نه لري او نه هم ورته پاملرنه کوي، بلکې امریکا له افغانستان څخه د سیمې د یوه معبر په توګه استفاده کوي او غواړي په مرکزي اسیا، جنوبي اسیا او د نړۍ په نورو برخو کې له دې لارې څخه خپلو موخو ته ورسېږي. نو رښتیا خبره دا ده چې په افغانستان کې به ناامني او وحشت تر هغه دوام کوي، څو چې امریکا په سیمه کې خپلو اوږدمهاله موخو ته ورسېږي، نو خلک باید له دې پرته بله هیله ونه لري.

د اسلام ضد او سېکولریستي ارزښتونو دودول: ښکېلاکګر هڅه کوي چې اسلام د افغانانو له ژوند څخه بېل کړي او د مسجد په محرابونو کې یې منحصر کړي، حتی د مسجدونو د ډېری امامانو خطبې د حج او اوقافو د وزارت او ملي امنیت د ریاست په خوښه جوړېږي او بیا امامانو ته ورکول کېږي. په دې نظام کې قوانین د اسلام خلاف، د رایو د اکثریت پر بنسټ پارلمان جوړوي او د دې پر ځای چې د انسانانو د خالق قوانین عملي کړای شي، برعکس د انسانانو په واسطه د جوړ شوي قانون پر بنسټ ژوند کوي.

افغان دولت خلک د اساسي قانون په دوو مادو باندې دوکه کړي دي؛ دویمه او دریېمه ماده: (د افغانستان د دولت دین د اسلام دین دی) او (په افغانستان کې هېڅ

قانون د اسلام د سپېڅلي دين او عقايدو سره په ټکر کې نه شي جوړېدلی) په داسې حال کې چې خلک په خپلو سترګو وينې چې څه ډول سېکولر نظام او ډيموکراسي پلي کوي، په دولتي ادارو کې رشوت، په بانکونو کې سود، په رسنيو کې فحشا، په پارلمان کې د رايو د اکثريت پر بنسټ د قوانينو تصويب، له کافرانو سره دوستي او سياسي جوړښتونه د اسلامي احکامو پر بنسټ نه، بلکې د قومي او سمتي افکارو پر بنسټ تشکيل ته شوي دي. دولت د درباري ملايانواوپيرانو په مرسته کفري موضوع ګانې اسلامي توجيه کوي او د (اسلامي) مختارۍ او وروستاړي په زياتولو سره خلک دوکه کوي.

د بدلمنی او بې حياتوب زياتوالی: د بدلمنی او بې حياتوب لمن په هر ښار او کوڅه کې غوړېدلې ده او د رسنيو له لارې د ناولو ترکي او هندي سريالونو په خپرولو سره ځوانان او پېغلې له مور او پلار څخه سرغړونې، له مخالف جنس سره د نامشروع اړيکو د پيدا کولو او په کورنيو کې د بې لاريتوب لپاره هڅوي. په پېغلو نجونو کې د جنين غورځولو د زياتوالي وروستي راپورونه او په د امن خونو تر نامه لاندې د فساد د مرکزونو زياتوالی تېکان ورکوونکي دي. د پروموټ په نامه او دې ته ورته د ښځو د حقونو په نامه پروګرامونه چې د مدني ټولنو او په ځانګړې توګه د ولسمشر د عيسوي مېرمنې لخوا مديريت کېږي، مسلمانې او محجبې مېرمنې تر خپلو بريدونو لاندې راولي او د دوی اسلامي شخصيتونه ترور کوي. په داسې حال کې چې افغان مېرمنې د اروپا د کډوالو په پنډغالو کې دې ته اړ ابستل کېږي چې له لسو څخه په کمو يورو خپل عفت وپلوري او يا هم وربانديې ډله ييز جنسي تيري ترسره کيږي.

اقتصادي ډګر: ښکيلاګکرو د افغانستان له نيواک وروسته د افغانستان اقتصادي سيستم ازاد بازار وټاکه. د ډيموکراسی اقتصادي سيستم هم د سياسي نظام په څېر د دين له مداخلې پرته جوړ شوی دی، چې په پايله کې يې په تېرو ۱۵ کلونو کې د پانګوالی د نظام بنسټونه لګه؛ سودي بانکونه، احتکار، انحصار، بيمه او ملا ماتوونکې ماليې په پراخه توګه اعمال کړې. د غرب د څه د پاسه سل ميليارده ډالري مرستې له ادعا سره سره بيا هم بې کاري او بې وزلي اوج ته رسېدلې ده او ۵۰ سلنه خلک په بې وزلی کې ژوند کوي او د بې وزلی د خورا زياتوالي له امله آن ځينې کورنی د خپلو ماشومانو پلورلو ته اړ شوې دي.

د غرب مرستو په افغانستان کې خلک په طبقاتي ډلو وويشل او همدا اوس د ۹۰ سلنه خلکو شتمني يوازې د ۱۰ سلنه شتمنو په لاسونو کې ده. افغانستان ۹۶ سلنه واردات او يوازې څلور سلنه صادارت لري. نو د کوم اقتصادي پرمختګ او لاسته راوړنې ادعا کوي. د افغانستان د دولت پاليسی يوازې د ښکيلاګکرو او د دوی د مزدورانو د ګټو د تامين او نړيوالو ښکېلاکي سازمانونو لکه د نړيوال بانک، د پيسو نړيوال صندوق او د نړيوال سوداګريز سازمان د پاليسيو د تطبيق لپاره دي، نه د افغانانو د اقصادي ستونزو د حل لپاره.

په ترانسپورت، روغتونونو، عدلي او قضايي مرکزونو او ګمرکونو کې شته وضعيت دا جوتوي چې دولت د خلکو د ذليلولو، سپک ګڼلو او د افغانستان د غيرتمنو او خپلواکو انسانانو د توهينولو سياست لوبوي. کابل دولت غواړي چې د افغانستان مبارز مسلمانان داسې سپک او ذليل کړي چې د دينداری او خپلواکی مفکورې يې له سره وباسي او د غلامی او ذلت عادت ورکړي.

ښوونيز نظام: په افغانستان کې د غربی مفکورو پر بنسټ ښوونيز نظام تاسيس شو او په ښکاره له اسلامي عقيدې سره په ټکر کې دی، چې له امله به يې راتلونکي نسلونه د اسلامي شخصيت پر ځای سېکولر او مزدور شخصيتونه تربيه کړي. د ښوونځيو او پوهنتونو په مضمونونو کې ډيموکراسي، له ژوند څخه د دين د بېلوالي مفکوره (سېکولريزم)، نشنلېزم او د آزادی او بشري حقونو مفکورې چې په ښکاره له اسلام سره په ټکر کې دي شاګردانو او محصلينو ته تدريسېږي او د دې ترڅنګ په ښوونيزو او تحصيلي مرکزونو کې د نجونو او هلکانو ترمنځ اختلاط لوی اخلاقي فساد رامنځته کړی دی.

مګر د اسلام د سياسي، اقتصادي او ټولنيز نظام څخه حتی يادونه هم نه کيږي او اسلام د عبادت يو وچ دين معرفي کوي. په اوسني تعليمي نصاب کې د

اسلامي ثقافت درسونه کم شوي دي، يوازې د څو عقيدوي او تعبدي احکامو په راوړلو يې بسنه کړې ده. په همدې سره زموږ مسلمان ماشومان او ځوانان پـه غربـي ثقافت سره روزي او اسلام د يوه خشن او د ژونـد لپاره د حـل لارې د نـه لرونکـي نظام پـه توګه معرفي کوي.

اې د افغانستان ښکېلاک ضد او مجاهد ولسه!

افغانستان اشغال شوی دی او افغانستان د امريکا پـه واسـطه د خپلـو سـيمه ييـزو موخو د لاسته راوړلو لپاره د يوې پوځي پروژې په توګه کارول کېږي. د امريکـايي چارواکو وروستيو څرګندونو او په افغانستان کې د هغوی د پوځيانو د زيـاتولو لپـاره چمتووالی، د بې پيلوټه الوتکو او بې ۵۲ ډوله الوتکو د بمباريو بيـا پيـل پـه دې دلالـت کوي چې افغانستان به پـه راتلـونکې کـې هـم د سـيمه ييـزو او نړيوالـو قـدرتونو د جګړې تود ډګر وي او په دې سيمه کې به جګړه همداسـې ګرمـه وي. نـو پـه يـوه داسې وضعيت کې به سوکالي، هوساينه، اقتصادي، صنعتي او سوداګريز پرمختګونه يوازې تش خيال وي او بس. رښتيا خبره دا ده چې د غـرب حـل لارې او ژمنـې يـوازې دوکه، غولونه او چل دی او د دې خبرې کره ثبوت وروستي ۱۵ کلن ناورينونه دي.

نو د غرب پر حل لارو د بطلان کرښه وباسئ او د مسلمانانو رښتينې سوکالي او نېکمرغي داسلامي نظام اوحاکميت په تاسيس کې ده چې د دنيا او آخرت دواړه خير ښـېګڼې رانغـاړي او د مـادي پرمختـګ لپـاره خـورا ښـه امنيتـي، اقتصـادي او ښوونيز شرايط چمتو کوي. همدارنګه د اسـلامي امـت عقلـي او فکـري قناعـت رامنځتـه کـوي، د شـيطان لـه شـر او د اخرت لـه عـذاب څخـه د خلاصـون پـه موخه د خلکو د ژوند لپاره غوره ايماني فضا رامنځ ته کـوي. ځکـه چـې د هغـو چارواکو اطاعت چې الهـي شـريعت نـه پلی کوي دوزخ ته د تلو لامل ګرځـي. اسلامي خلافت په اسـلامي امـت کـې د قـــومي، ژبنـــي، ســـمتي او مـــذهبي اختلافونو د ترويج پـر ځـای د اسلامي امت ځواک د کفارو او ښکېلاکګرو پـر وړاندې راپورته کوي. نو له همدې امله لانـــديني آيتونـــه د عقلمنـــو او پنـــد اخيستونکو لپاره غوره نصيحت دی:

يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ يَقُولُونَ يَا لَيْتَنَا أَطَعْنَا اللَّهَ وَأَطَعْنَا الرَّسُولَا ﴿٦٦﴾ وَقَالُوا رَبَّنَا إِنَّا أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَاءَنَا فَأَضَلُّونَا السَّبِيلَا ﴿٦٧﴾ رَبَّنَا آتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ الْعَذَابِ وَالْعَنْهُمْ لَعْناً كَبِيراً ﴿٦٨﴾

سوره: الأحزاب

هغه ورځ به يې مخونه د دوزخ پـه اور کې اوړي را اوړي او په چيغو سره به وايـي: اې کاشکي چې له الله سبحانه وتعالی او د هغه له پيغمبر څخه مو اطاعت کـړی وی او وايي بـه اې ربـه! مـوږ لـه خپلـو مشـرانو او لويـانو څخـه پيـروي وکـړه او لار ورکـي شـوو، اې ربـه! دوی تـه دوه چنـده عـذاب ورکړه او له خپل رحمت څخـه يـې ډېـر لرې کړه.

## صحابه رضي الله عنهم او نښه ويشتل

صحابه کرام رضي الله عنهم پـه لينديء بانـدې نښـه ويشـتلو کـې څـومره مهارت لاره؟! راځئ له دې تاريخي روايته يې معلومه کړو، د انبار په جګړه کې د دښمن لښکر او سر لښکر يې خطرناک خلک وو، خالـد بـن الوليـد رضـي اللـه عنه خپلو غازيانو ملګرو ته امر وکړ چې دښمنان پـه سـترګو ولـئ، هغـوی همداسې وکړل، دښمن چې د صحابه و، کاري وارونه وليدل ماتـه يـې وخوړلـه. ويل کيـږي د جګـړې پـه ډګـر کـې د دښـمن شـاوخوا ۱۰۰۰ وتلـې سـترګې پيـدا شوې! او له دې امله دا جګـړه اسـلامي تـاريخ کـې پـه "غـزوة ذات العيـون" سـره ياديږي. البدايه والنهايه لابن کثير

عبـد الهـادی

# په داخل کې بې ځایه کډوال به څرنګه خپلو کورونو ته ستانه شي؟

د دوه کـالو پـه تیرېدوسـره دحکومت دکارونو لویه لاس ته راوړنه داده چې ووایـي کـافي بودیجـه نـه ده مصـرف شـوې او د جګـړو لـه املـه لـه کورونو تللي کډوال خپلو کورونو ته نه دي راسـتانه شـوي، یـا پـه ولایـاتو کـې دناټو هـوایي ځواکونـه بمبـاري وکړي دارګ په فرمان سره یواځې دومره وشي چې سیمې تـه یوپلاوی ورولیږل شي دا د حکومت دلاس تـه را وړنو څخه شمیرل کیږي .

تیـره ورځ د ارګ څخـه پـه یـوه اعلامیه کې وویل شول چې هغه کډوال چې په هیواد کې دبیلابیلو سیمو څخه د جګړو په دوام له کورونو وتلي ۶۹ سلنه خپلو کورونو تـه نـه دي راستانه شوي دا راپـور هغـه مهال لـه ارګ څخه خپور شو چې د ملګرو ملتونولخوا په افغانسـتان کې په راتلونکي یخ ژمي کې د کډوالو دستونزو په اړه یوراپور خپور کړل شو په راپـور کـې ویـل شـوي وو چې کـډوالو سره دومره مرسته نه کیږي چې د ژمي دیخ څخه وژغورل شي.

په روان کال کې دسختو جګـړو لـه امله د بې ځایـه شوو کورنیـو شمیر تـر ۹۵زروپـورې رسـیږي چې حکومـت د دي بـې ځایـه شـوو کورنیـو لپـاره لازم تدابیر نه دي نیولي او امکان لري د جګړو په دوام په هیواد کې نورې کورنۍ هم کډو کولو ته اړ کړل شي.

د حکومت چاروا کي خو تـل وایـي چې مورږ د هیواد په داخل کې دبې ځایـه شـوو کورنیوسره مرسـتې کـړې دي خـو هغه کسان چې په داخلي جګړو کې او یـا د ناټو لخوا یې د بمباریو دخطر لـه وجې کډې کړې دي وایي چې حکومت ورسره هـیڅ ډول مرسـته نـه ده کـړي یـواځې د میـډیا پـر مـخ نړیوالـو تـه څرګنـدیږي چې حکومت د بې ځایه شوو کورنیو سره مرسته کوي.

داچې په داخل دهیواد کې دجګـړو له امله ۶۹ سلنه کـورنۍ خپلـو کورنو تـه پـه تللو نه دي توانیـدلي سترلامل یې دادی چې تراوسه پـورې لـه هغـو سیمو چې کورنۍ کډوکولو تـه اړشوي دي پـه هغو سیمو کې اوس هم دجګړو خطر شـته او بـې ځایـه شـوې کـورنۍ دبیـا جګـړو دخطر لـه امله خپلو کورونو تـه د انتقـال زړه نه ښه کوي.

دا حکومـت چـې تراوسـه پـورې سـره د هرډول مرسـتو د کورنیو جګړولـه املـه د تللو کورنیو پـه خونـدي کیـدا نـه دی توانیدلی له پاکستان او ایران څخه په راستنو شوو کورنیوبه هم دمرستو په نامـه دانتظار شـپې سـبا کوي چـې د یـادو دواړو هیوادونـو د راسـتنو شـوو کډوالو شمیر تر اتو لکو پـورې رسیږي

.

دملګـرو ملتونـو د راپورونو پـه اساس دموجوده حکومت کمزورتیا نوره دومـره زیاتـه شـوې ده چـې هـیڅ ډول توجیه یې نه شي کیدای او اختلاف خو یې ددې لا مل شو چې دادی پـه یوولسـو ولایاتو کې سخته جګړه روانه ده .

پـه داسـې سخت وخت کـې چې د ژمـي یخنـي را روانـه ده دجګـړو لـه املـه دبې ځایـه شوو کورنیـو سره مرسته ونـه شي هیواد به دیوه سخت انساني ناورین سره مخ شي .

غـوره داده چـې ملګـرې ملتونـه د کابـل دموجـوده اداري څخـه دمرسـتو دویـــش واک واخلـــي او دخپلـــو کـارکوونکو پـه لاس دبـې ځایـه شـوو کورنیـو سـره مرسـتې وکـړي ترڅـو یـې ماشومان دیخنۍ نـه وژغـورل شي او کـه نه نو حکومت همغه حکومـت دی چې پـه وار وار یې پـه نړیواله کچه پـه فسـاد کـې لومړی مقام خپل کړی دی.

هغـه مرسـتې چـې دملګـرو ملتونـو لخوا موجوده حکومت سره کیـږي هغـه دوی(چارواکي) په خپلو کې سره ویشي او جګړه ورځ په ورځ مـخ پـه زیاتیـدو ده، کډوال به څرنګـه خپلـو کورونو تـه ستانه شي.

# چرا امریکا افغانستان را به پایگاه دایمی اش مبدل می سازد؟

#احمدصدیق احمدی

عمده ترین استراتیژی امریکا در جنگِ افغانستان ظاهراً ریشه کن سازی لانه های تروریزم و پایان خشونت بود، اما با گذشتِ بیش از یک ونیم دهه جنگ تاکنون حتی کابل پایتخت از هیچ نوع آرامشی برخوردار نیست. چنان چه حملات روز افزونِ انتحاری، ترور افراد و شخصیت های سیاسی و نیز تاجران یکی از شاخصه های آنست.

جورج بوش رئیس جمهور امریکا به بهانه ای حادثۀ یازدهم سپتمبر حمله نظامی را بر افغانستان راه اندازی کرد. در آن زمان نیروهای نظامی امریکا توانست حکومت طالبان را یک سره و در مدت کمتر از دو ماه سرنگون سازد، این در حالی بود که طالبان در بیشترین بخش های از افغانستان تسلط داشتند.

استراتیژی بوش بیشتر بر افزایش نیرو و تداوم جنگ در افغانستان استوار بود، اما با روی کار آمدن اوباما، استراتیژی امریکا ظاهراً بر افزایش نیروی نظامی مبنی بر پایان جنگ و خروج این نیروها از افغانستان طرح شده بود. چنان چه اوباما پس از پیروزی اش در دورِ نخست انتخابات ۲۰۰۹م طی نطقی اعلام داشت: "بر اساس منافع حیاتی ایالات متحده ۳۰ هزار نیروی کمکی به افغانستان اعزام می شود. از اوایل سال ۲۰۱۰م روند اعزام این نیروها به افغانستان آغاز می شود و پس از ماه جون ۲۰۱۱م روند خروج آن ها آغاز خواهد شد."

به دنبال آن قرار بود مطابق استراتیژی اوباما پس از پایان سال ۲۰۱٤م نیروهای امریکایی از افغانستان بیرون شوند و تنها تعداد محدود از آنان در پایگاه های نظامی به هدف آموزش و مشوره به نیروهای افغان حضور داشته باشند. مطابق این استراتیژی قرار شد تا ماه جنوری ۲۰۱۷م، شمار سربازان امریکایی از ۹۸۰۰ تن به ۵۵۰۰ تن کاهش یابند، ولی به تاریخ ۲۰۱٦.۰٦.۰۹م، بارک اوباما در یک اقدام تازه نقش وسیع تری را برای نیروهای امریکایی در افغانستان صادر نمود؛ چنان که اشتون کارتر وزیر دفاع امریکا بیان داشت: "تغییرات در استراتیژی امریکا و افزایش اختیارات بیشتر به فرماندهان برای کمک به نیروهای نظامی افغان طراحی شده است. براساس این استراتیژی نیروهای امریکایی می توانند علاوه بر کمک، مشاوره و آموزش در کنار نیروهای امنیتی افغان در میدان های جنگ حضور یابند."

بنابرین از آغاز حمله نظامی امریکا تاکنون عمده ترین استراتیژی آن که ظاهراً ریشه کن سازی لانه های تروریزم و پایان خشونت بود، به حقیقت نپیوست. جالب این که در این رابطه هیچ نوع اختلافِ میان اداره جورج بوش از حزب جمهوری خواه و اوباما از حزب دموکرات دیده نمی شود، نه اختلاف پیرامون تداوم جنگ و حضور درازمدت نظامی و نه هم اختلاف پیرامون استفاده از قلمرو افغانستان به عنوان پایگاه برهم زدن آرامش کشورهای همجوار، به ویژه کشورهای آسیای میانه در همسایه گی چین و روسیه؛ منطقه ای که ایالات متحده امریکا به ذخایر انرژی و نفت دریایی خزر آن دسترسی ندارد.

براساس برآوردهای جهانی اورآسیا، منطقه ای که افغانستان در همسایه گی آن موقعیت دارد، ۷۵ درصد انرژی تمام جهان را در خود جا داده است. به همین دلیل امریکا افغانستان را به پایگاه دایمی خود مبدل می سازد و تداوم جنگ وسیله ای است که امریکا آرام آرام نفوذش را در منطقه از این طریق گسترش می دهد.

# ماشومانه منطق!

قاري خالد

غـربي اشـغالګر او ځيـره خـواره جنرالان يې نيوکه کوي چې ګويا طالبان له کليو ـ کورونو جګړه کوي، ځکه دناټو په بمبارد کې زيات زيان ولسي وګړو ته اوړي.

دوی وايي؛ که طالبان له کليو ـ کورونو جګړه ونکړي، هيڅکله به ولسي وګړي زيانمن نسي.

دوی دخپل ماشومانه منطق له مخې په دې نظر دي چې طالبان بايد دژمي سړې شپې، له کليو او کورونو دباندې، په سپېره دښته کې روڼې کړي، او په عموم کې له کليو ـ بانډو کډې ونغاړي، ګانګړې طالب کالونيانې جوړې کړي او دجګړې لپاره مشخص ډګرونه انتخاب کړي.

که بالفرض طالبان غوښتنه وکړي؛ حکومت دې له کليو او بانډو د اربکيانو او سرحدديانو پوستې او بېزونه وکاږي، او له ښاريانو دې دغربي اشغالګرو پوځيانو اډې، دښتو او ميرو ته ولېږدوئ؛ دوی به يې غوښتنه ومني؟

که ددوی منطق ومنو چې کوم کورونه چې دوی بمبارد کړي، هلته دطالب مشرانو غونډه وه، بيا خو په کار ده چې پر هغو فدايي بريدونو، چې د اشغالګرو او داخلي پوځيانو دبېزونو سره، ترسره کېږي او ولسي وګړو ته ورکې مرګ ژوبله اوړي هم چوپه خوله پاته سو او طالب ته د پر ګوته ونه نيسو

طالبان چېرې ولاړ سي؟ داسې يو ډګر وټاکي چې بدمعاشه امريکا يې يو مخ بمبارد کړي؟ که همداسې وکړي؛ نړۍ داسې کومه اداره او کوم ځواک لري چې د امريکايانو په سترګو کې سترګې واچوي او پوښتنه ترې وکړي؟

دا ډول احمقانه او ماشومانه منطق له بدمعاشۍ او پر افغانانو له تمسخر پرته بله معنا نلري.

دا به په جګړه کې نوی نوښت وي چې يو ځوک دې چاته ووايي چې له فلاني ځايه راووځه چې بمبارد دې کړم، ودې وژنم او کور درته کنډر ـ کنډر کړم.

دلته زموږ په علاقه کې ديوه کلي په اړه مشهوره ده چې دبل کلي سره يې جګړه وه، له جګړې مخته ددواړه کليو مشران سره کښېنوستل او پرېکړه يې وکړه چې جګړه حتمي ده البته سر، خېټې او خ...... ته به ګذار بند وي

دغه کلی تر دې دمه د احمقانو په کلي مشهور دی، ځکه چې دوی په جګړه کې د احمقانه نوښت مبتکرين دي.

ددفـاع وزارت دويانـد دولـت وزيـري کلـی د'ټګـانو کـلي' پـر نـوم يادېږي، که دولت وزيري په تمامه معنا ټګ نه وي، دکومو نړيوالو مقرراتو له مخې دطالب په ټس کې ولسي اتباع، په اشغالګرو بمباردوي او بيا په ډېره سپين سترګۍ دطالب لېبل پرې سرېښوي؟

که طالبان په پوسته او يا بېز جګړه کوي، او ولسي وګړو ته زيان واوړي؛ ټګ وزيري به يې ومني چې د ولسي وګړو دزيان او مرګ ژوبلې لامل ددوی پوستې او بېزونه دي؟

په جګړه کې دښکېلو اړخونو مکلفيت دادی چې د ولسي وګړو خيال وساتي، اوس که هره ډله دمخالف دوژلو لپاره، ولس ته زيان رسوي، پړه يې دهمدې ډلې پر غاړه ده

امريکايانو په کراتو ولسي وګړي بمبارد کړي، ودان کورونه يې وېجاړ کړي، واړه ماشومان يې شهيدان کړي، زاړه او ځوانان يې په بمونو پرچه ـ پرچه کړي او بيا يې ټوله کيسه، فقط په يو 'آی ام سوري' نسياً منسياً کړې.

له بمبارد وروسته پلمې لټول، د ولس په احساساتو او وينوپسخند وهل دي.

ټـګ دولـت وزيـري دې زهـر وخوري چې اشغالګرو ته دخپل ولس دوژلو پلمې لټوي او د برآئت لپاره يې له احمقانه منطق څخه کار اخلي.

يوه يادونه به وکړم؛ غربي اشغالګر پوځونه، دهر مسلمان او هر افغان پر وژنه دخوښۍ احساس کوي، په قصدي ډول يې وژني او بيا دځان دبرآئت لپاره، دټګ وزير په څېر ځيره خورو ته دنده سپاري، ترڅو ورته دبرآئت لپاره توجيهات ولټوي

اشغالګر پوځيان احمد او محمود ته په يوه سترګه ګوري، او هغه ځوک چې د اشغالګرو تملق او چاپلوسي کوي، لېرې نده چې دهمدوی پر لاس به ذليل او شرمنده سي.



شریف جواد

# ولې اشرف غني د کندز د شهیدانو قاتلین نه غندي؟

ورمه شپه امریکایانو په کندز کې یو کلي بمبار کړ، پنځوس کورونه یې په بشپړ ډول ویجاړ کړل او د دولتي چارواکو په اعتراف لږ تر لږه ۳۰ کسان یې ووژل چې اکثره یې ماشومان او ښځې وې. پښتنه افغانانو په پراخه کچه وغندله، د امریکایانو دا عمل یې ظلم او وحشت وباله. خو اشرف غني لکه د تېرو فاجعو په شان دا ځل هم د امریکایانو په دغه ظلم سترګې پټې او خوله چوپه کړه.

د امریکایانو په مظالمو د اشرف غني د خاموشی په اړه بېلابېل عوامل ذکر کیږي. ځوک یې امنیتي تړون لامل بولي او ځوک قضایي مصونیت. خو هغه عامل چې د دې ټولو په سر کې راځي او امنیتي تړون هم ورڅخه سرچینه نیسي هغه د «ګټې او تاوان» په نامه اقتصادي نظریه ده چې اشرف غني پرې معتقد دی او پایله یې له هر ډول ملي او مذهبي قیوداتو ازادي او وچه ګټه ترلاسه کول دي.

دا هغه نظریه ده چې د مادي ګټې لپاره اخلاقي او انساني ارزښتونه نه پېژني، انسان ته د یو مادي ځیز په سترګه ګوري او مادي لاسته راوړنې ورته تر هر څه مقدمې دي. دا مفکوره د کپیټالیزم د نظام څخه سرچینه اخلي چې پر اساس یې سیاسي نظامونه رامینځته شوي او امریکایان یې سرلاري بلل کیږي.

د امریکا د پخواني ولسمشر بل کلنټن د جمهوري ریاست په موده (۱۹۹۶م) کې په عراق باندې اقتصادي بندیزونه ولګیدل، دغو بندیزونو پنځه کاله دوام وکړ چې په نتیجه کې یې پنځه لکه عراقیانو خپل ژوند له لاسه ورکړ. د ملګرو ملتونو د احصائیو په اساس په میاشت کې ۴۰۰۰ ماشومانو د لوږې له کبله ساه ورکوله. خو کله چې د امریکا د بهرنیو چارو وزیرې (ماډلین اولبرایټ) څخه په دې اړه پوښتنه وشوه چې د لکهاوو عراقیانو د وژنې په اړه څه وایې؟ هغې په ډېرې بې شرمۍ ځواب ورکړ: «که تر لاسه شوې ګټې ته وګورو نو زما په فکر دا ګټه په همدې تاوان ارزي».

د مادي ګټې او تاوان د دغې مفکورې لارویان ولس، خاورې، کلتور، عقیدې، بشري حقوقو او په هیواد کې هر شي ته د خرڅلا د توکي په سترګه ګوري چې د اړتیا پر مهال په بازار کې عرضه کیږي.

اشرف غني چې له ورکتون څخه تر پوهنتون یې ټول عمر د همدې نظریې سره تېر کړی، که د کمپاین له وخته یې تر اوسه پورې خبرو ته پام وکړئ ټول ترکیز یې په مادي ګټې وټې راځرخي او هر شي ته په اقتصادي عینکو ګوري.

د طالبانو په وخت کې په اسلام اباد کې افغان سفیر ملا عبدالسلام ضعیف وایي چې اشرف غني ترې د سولې په برخه کې د همکارۍ غوښتنه وکړه. وایي ما ورته وویل چې آیا سوله د غربت په حال کې غواړې او که جګړه د پیسو سره؟ ځکه چې د جګړې

لپاره دنیاوال پیسې درکوي خو د سولې په حالت کې بیا څوک پیسې نه درکوي. اشرف غني چې د ګټې او تاوان د مکتب شاګرد دی، لنډ ځواب ورکړی و چې: جګړه د پیسو سره. یعنې که د افغانانو د وینو په بدل کې څوک پیسې راکوي ما ته پیسې اهمیت لري، نه د افغان ژوند.

هو تېره ورځ چې امریکایانو په کندز کې په کومو ښځو او ماشومانو کورونه ورونړول، دا د هغو پیسو قیمت دی چې اشرف غني د سولې په بدل کې غوښتې. هلته چې د بې ګناه افغانانو خولې په خاورو او خځلو ډکې وې په دې ګټه ارزیدې چې په بدل کې یې مادي مفادات ترلاسه شي.

د مادي ګټې او تاوان د مکتب دغه شاګرد کله-کله د مادیاتو د ترګوتو کولو لپاره دومره چټکه منډه واخلي چې اسلامي ارزښتونه خو پرځای پرېږده افغاني غرور او ملي نوامیس تر پښو لاندې کړي. هو، هغه ته ملي نوامیس څه معنی لري؟ آیا افغاني غرور مونږ ته شیدې راکوي که مستې؟ څه مادي ګټه خو نه ده!!

نو بناء د اخلاقیاتو څخه عاري، د کپیټالیزم پر نظریې ولاړ سیاستمدار او د ګټې او تاوان د مکتب له شاګرد څخه دا طمع بې ځایه ده چې د افغانانو قاتلین مفت (وړیا) وغندي، هغه که غواړئ غبرګون وښیي نو د دې کار اقتصادي مفادات او د نه غندلو په صورت کې یې مالي تاوانونه ورپه ګوته کړئ. په افغاني غیرت او انساني عواطفو رانغښتل بې ځایه ستړیا ده.

## د ژوند شریک انتخاب

پخپل باغ کې یې غلام ته وویل: لېږ انګور راوړه، هغه انګور ورته راوړل خو هغه تروش وو، بیا یې ورته وویل: دا تروش دي ، خواږه راوړه، هغه دویم ځل هم تروش انګور راوړل، دی ورته غوسه شو ورته کړه یې: دا څنګه باغوان یې خواږه او تروش انګور نه سره پېژنې؟! هغه ورته وویل: تاسو زه د باغ ساتلو ته نیولی یم، نه د میوو خوراک ته، د باغوان په خبره هک پک شو، او ورته ویې ویل: الله مو وساته، او هغه به تاسو ته د خپلې امانتداري بدل درکوي. او په هغه ځای یې خپله لور ورته نکاح کړه.

دا د قاضي نوح بن مریم کیسه ده، دی مشهور قاضي او وتلی مشر و، د ده پوهه او ښایسته لور آن د وخت لویو واکمنو او مشهورو خلکو ورنه غوښتې وه خو ده خپلې لور ته خپل امانتدار باغوان خوښ کړ او پوهیږئ دا باغوان څوک و؟ دا واضح الحنظلي نومیدی او د وخت د مشهور محدث، عالم او مجاهد عبد الله بن المبارک رحمه الله پلار و، عبد الله د دې مور او پلار په برکت داسې شخصیت وګرځیدی چې تر ننه پوري د مسلمان امت له پاره د علم، تقوا او جهاد نمونه او ایډیال دی.

له حسن البصري رحمه الله نه یوه سړي مشوره وغوښتله چې لور مې څنګه سړي ته ورکړم؟ هغه ورته وویل: داسې کس ته لور ورکړه چې له الله نه ویرېږي، ځکه له الله ویرودونکی که مینه ورسره ولري عزتمنه به یې کړي او که نه ظلم هیڅکله نه ورسره کوي، متاسفانه د لوڼو ډېری پلرونه د خپلو لوڼو له پاره د ژوند شریک په انتخاب کې د نورو مختلفو لورو لحاظ کوي خو د دینداري لور ته یې پوره توجه نه کوي، او اصلي د توجه وړ ځای د سړي رښتینې دینداري ده. لوڼو ته د هغو د ژوند شریک انتخاب باریکه او مهمه خبره ده، د ژوند د مختلفو لورو اړخ ته له توجه سره د ځوان دیانت او تقوا ته توجه مهمه ده.

مجاهد سراج

# د مسلمانانو د روان بـد حالت سبب جـهاد دی که سره کمونستي او ديمـوکراتيك انقلابونه؟

د ټولنيزو شبکو پر مخ د صليب او نفـاق د جگـړې ډالـري کرايي جنګيالي د جهاد په سپېڅلي فريضه يوه نيوکه دا کوي چې جهاد له وينو تويولو او وراني پرته بله ګټه نلري او مجاهدينو تـه د پيغور په ډول وايي چې تاسې په افغانستان ، عراق ، سـوريه او نورو اسلامي هيوادونو کې له وراني پرته څه وکـړل ؟ او د تاسـو جهاد څه ګټه لري ؟

موږ وايو د اسلام له مخې جهاد د بې هدفه وينو تويولـو او وراني نوم ندی ، بلکه د جهاد غرض د ځمکـې لـه مـخ څخـه د ظلم او فساد ورکول او د الله جل جلاله پر ځمکـه د الله د قـانون نافذول دي ، جهاد د وطني ، قومي او مادي ګټو لپاره نـه تـرسره کيږي ، جهاد د تباهۍ لپاره ندی ، مسلمانانو ته الله جل جلالـه د کفارو او مشرکينو د ظلم او تـيري پـه ورانـدې د جهـاد او قتـال اجازه ورکړې او اسلامي دعـوت د جهـاد او قتـال پـه برکـت لـه جزيرة العرب او د نړۍ له زياتې برخې څخه د جهالت هغه هغـه تور تم او د ظلم او فساد تغر ټول کړ چې پـه يـادولو يـې انسـان بوګنيږي .

يـاد حقيقـت مـوږ د مسـلمانانو او کفـارو د مؤرخينـو پـه کتابونو کې په زرينو کرښو ليکلی موندلای شو .

که لږ نيږدې راشو او په تيره يوه پيړۍ کې د جهاد پـايلو تـه ژور نظر وکړو دې حقيقـت تـه رسـيږو چـې د کمـو تـش لاسـو مجاهدينو په برکـت د نـړۍ مظلـوم ولسـونه پـه ځـانګړې توګـه مظلومو مسلمانانو د انګريزانو او شورويانو له وحشي طوفـانونو څخه نجات وموند.

موږ د جهاد مخالفو کمونستو ، ملحدو ، سيکولرو او نورو منحرفو عناصرو څخه پوښتنه کوو چـې کـه لـه انګريزانـو سره د نړۍ په بيلابيلو اسلامي هيوادونو کې جهاد نه وای تـرسره شـوی او د آزادۍ لپاره ورسره مبارزه نه وای شـوې او د تاسـې پـه څېـر ايمان پلورونکو نظريات د هغه وخت مسلمانانو منلي وای نن به د اسلامي نړۍ څه حال ؤ ؟

آيـا نـن بـه د اسـلامي نـړۍ هيوادونـو دا اوسـنۍ نسـبي خپلواکي لرلای ؟ يا به أقلاً د مسلمانانو پـه نـوم کومـه جغرافيـه وای او له ټولو مسـلمانانو سره د انـدلس يـا اوسـنۍ هسـپانيې ، پرتګال ، برما او شرقي ترکستان پـه څېـر معاملـه نـه وای تـرسره شوې ؟

که افغانانو د انګريزانو په خلاف درې جهـادي جګـړې نـه وای ترسره کړې ، تاسې څه فکر کوی چې نـن بـه افغانسـتان پـه کوم حال کې ؤ ؟ يو بل اندلس به ؤ که يوه بله ترکيه ؟

له افغانانو څخه چې د احمدشاه بابا لويـه امپراطـوري لاړه او تر اټک او اصفهان پورې سيمې يې له لاسه ورکړې او په وچه محصور شو آيا دا بدبختي د تاسې په څېـر د ايمـان پلورونکـو د سازشونو او د جهاد د ترک له امله نه وه ؟

موږ له دوی څخه پوښتنه کوو چې که له سرو لښکرو سره افغانانو جهاد نه وای کړی او له نړۍ نه یې د دغه ستر طوفان مخه نه وای

گرځولې نن به د افغانستان څه حال ؤ ؟

آیا افغانستان به د کوم بل نړیوال جنګ ډګر نه ؤ ؟

او که فرضاً د بل نړیوال جنګ ډګر هم نه وای پاتې شوی او تر اوسه پورې د شوروي او کمونستو خلقیانو او پرچمیانو په لاس کې وای نو بیا به آزاد هیواد وای که د شوروي فدراسیون یو ایالت یا کورواک جمهوریت ؟

او آیا زموږ اوسنی نسل به د نن په څېر راسخ مسلمانان پاتې وای ؟

حقیقت دا دی چې جهاد د یوه قوم معنویت ، اسلامي تشخص او ربښتونی هویت ساتي که یو مسلمان قوم د تیري په مقابل کې جهاد ونه کړي ، استعمار به څو سرکونه ، پلونه ، بندونه ، مکتبونه ، فابریکې ، تعمیرونه ، تعلیمي او صحي ادارې ورته جوړې کړي خو معنویت ، اسلامي تشخص او ملي هویت به یې داسې له منځه یوسي چې بیا به یې د رغیدو امکان ه وي .

تاجکستان ، ازبکستان ، ترکمنستان او د منځنۍ آسیا د هیوادونو اوسنی حالت چې اسلامي او ملي تشخص یې تقریباً له منځه تللی زموږ په مخکې دی او د دې عمده سبب د دوی له لوري د جهاد ترک ؤ ، کفري نړۍ اوس هم دوی نه ښني او کم تر کمه د هغه دیموکراسۍ اجازه هم نه ورکوي چې کفارو ځان ته خوښه کړې ، دیکتاتوران یې پرې واکمن کړیدي او نن یې حالت دې ته رارسیدلی دی چې اسلامي نومونه په ځان نښې کیښودلای ، اتلس کلن ځوانان یې د لمانځه د ادا کولو حق نلري ، او سوګند به د الله پر ځای د پاچا په نوم سره یادوي .

سربیره پر پورتنیو حقایقو په تیره یوه لسیزه کې اول جنګ مسلمانانو ندی پیل کړی ، جنګ په مسلمانانو تپل شوی ، مسلمانان د دسیسو ښکار شوي ، په افغانستان کې اته دیرش کاله دمخه کمونستانو په داؤد خان کودتاه وکړه ، سور انقلاب یې راوست ، سرې لښکرې یې افغانستان ته راوستې ، ملیونونه کسان یې د هیواد پریښودو ته مجبور کړل ، یونیم ملیون یې شهیدان کړل ، یو ملیون یې معیوب کړل ، افغانانو یوازې له خپل ځان ، ناموس ، خاورې او عقیدې څخه د دفاع په موخه جهاد کړی دی .

د افغانستان د بدبختیو اصلي عوامل پخواني کمونستان دي ، نه د حق د لارې ربښتوني مجاهدین !

کله چې جهاد کامیاب شو ، شرق او غرب بیا پخواني مجاهدین دې ته پرینښودل چې واحد مرکزي حکومت جوړ کړي او تر منځ یې د نفاق او جنګونو اور ته لمنه ووهله ، د طالبانو تحریک د شرق او غرب د دغه سترې دسیسې په وړاندې د ځوریدلو افغانانو یو دفاعي غبرګون ؤ او چې په دې دسیسو لویدیځ هدف ته ونه رسید نو د یوولسم سپتمبر د حملو په پلمه یې چې د مظلومو مسلمانانو انتقامي حملې وې په افغانستان مستقیماً یرغل وکړ او د افغانانو په وړاندې یې داسې بشرـ ضد جنایتونه ترسره کړل چې د نړۍ په تاریخ کې یې بیلګې ډیرې کمې تر سترګو کیږي .

موږ په جهاد له تنقید کونکو څخه پوښتنه کوو چې آیا طالبان له ځان څخه د دفاع حق نلري ؟

که طالبانو یې په وړاندې مقاومت نه وای کړی نن به دافغانانو څه حال ؤ ؟ د نړۍ نورو مسلمانانو سره به متکبرو او مغرورو امریکایانو څه کړي وای ؟

د افغانانو اسلامي او ملي تشخص به په څه حالت کې قرار لرلای ؟

او دوی په تیرو پنځلس کلونو کې افغانستان په اقتصادي ، سیاسي او دفاعي لحاظ تر کوم ځای پورې رسولی دی ؟

آیا څو سرکونه ، پلونه او د ملت په لوټ شوو شتمنیو دنګ شوي بلند منزلونه او د یو نیم ملیون جریبه ځمکې غصب ، د نړۍ په کچه په اداري فساد کې د حکومت دریم والی ، دوه سری حکومت په بهرنیو مرستو متکي ، د پخوانیو کمونستانو تر قوماندې لاندې نظامي او امنیتي وسلوال داړونکي ځناور اربکیان ، بې حیایي او فحاشي د پردیو فرهنګونو راواردول ، فحش سریالونه لاسته راوړنې او پرمختګ وګڼو ؟

موږ د جهاد په اړه د شکونو او شبهاتو له خپروونکو څخه پوښتنه کوو چې په عراق کې اوسني حالت ته زمینه چا مساعده کړه ؟

عراق چا د اور په تنور بدل کړ ؟ د عراق په مسلمانانو دا دوه نیمې لسیزې څوک بمونه اوروي ؟

د عراق د صدام په نسبت لویدیځ ته چا تر اوسه دومره تنزل کړی ؟

ولې یې برید پرې وکړ ؟

تاسې چې د عراقیانو په دفاعي جهاد انتقاد کوی تاسو ولې د صلیبیانو په تعرضي جګړه اعتراض نکوی چې د عراق د مظلوم ولس په ضد یې پیل کړی دی ؟

موږ په جهاد له مفسدینو نیوکه کونکو څخه پوښتنه کوو چې په لیبیا ، یمن او سوریه کې ګلابي انقلابونه چا ډیزاین کړل؟ د چا په اشارو او ملاتړ پیل شول ؟

آیا هم دا ګلابي دیموکراتیک انقلابونه د یادو هیوادونو د ټولو اوسنیو بربادیو اصلي عوامل ندي ؟

او دا په داسې حال کې چې د یادو هیوادونو رنګ شوي نظامونه ، نه اسلامي ؤ او نه جهادي ، بلکه له ختیځ او لویدیځ نه هم د مجاهدینو په دښمنۍ کې وړاندې ؤ ، اوس د یادو هیوادونو مسلمانان د کوم ظالم د بمونو او بارودو اور ته لاس تړلي ځانونه وروغورځوي ؟

آیا دوی له ځانه د دفاع حق نلري ؟

آیا دوی په لوی لاس جنګ ته ورټیل نه وهل شول ؟

پورتنیو حقایقو ته په پام سره په صراحت دا ویلای شو چې جهاد تل د نړۍ مظلومو ولسونو په ځانګړې توګه مظلومو مسلمانانو ته نجات ورکړی او دا په اصطلاح له سولئیزې لارې ، سره او ګلابي انقلابونه دي چې مسلمانان یې له بدبختیو ، تباهیو او ورانیو سره مخ کړيدي .

همدغه راز کفارو ته تسلیمۍ او بې غیرتۍ ، مسلمانو قومونو ته د دوی د اسلامي تشخص او ملي هویت له مسخه کیدو پرته بل ارمغان ندی لرلی او نه یې مسلمانان په سیاسي ، اقتصادي او نظامي برخه کې په استعمار او استکبار له تکیه کولو څخه خلاص کړي دي.

په ټوله نړۍ کې د جهاد او مجاهدینو د بریالیتوب په هیله

## ادب و رفتار بزرگان دین ما

*داوود طائی که یکی از شاگردان امام ابوحنیفه (رح) بود فرموده است: مدت بیست سال در خدمت امام ابوحنیفه (رح) بودم در این مدت در موقعیتهای مختلف در میان مردم و هنگام آرامش و استراحت ، در رفتار و حرکات وی نگریستم ، هیچ گاه ندیدم امام عمّامه از سر بردارد یا پایش را دراز کند ، روزی به وی عرض کردم جناب ، هنگام استراحت است ، اگر عمّامه تان را بر دارید یا پایتان را اندکی دراز کنید ، چه می شود ؟ فرمود رعایت ادب و شرم و حیا از خداوند متعال ، در این مواقع سزاوارتر است.*

*"نسأل الله الوقایه من النّار ، والبعد من الصّد عن دینه و کتابه ، انه هو السمیع العلیم"*



# جایگاه طبابت در دین مقدس اسلام

هر اندازه موضوع علمي پراهميت و هدف آن مقدس تر باشد، آن علم هم از ارزش و اهميت بيشتري برخوردار خواهد بود. موضوع دانش طبي بدن انسان، و هدف آن تأمين سلامت و تندرستي آدمي است، و اهميت اين موضوع و هدف از ديدگاه اسلام بر كسي پوشيده نيست؛ زيرا اسلام تا آنجا به سلامت انسان اهميت مي دهد كه اگر تكليف واجبي به تندرستي آدمي لطمه بزند، نه تنها انجام آن از نظر شرع لازم نيست، كه در چنين شرايطي انجام آن حرام خواهد بود.

در اسلام، علم ابدان همتاي علم دين، ارزشمند به شمار آمده است؛ چنان كه دانش بر دو نوع است: دانش ديني و دانش بدن...

طبابت حرفه اي است كه در هيچ دوره اي، مردمان از آن بي نياز نبوده و نيستند. تا دنيا، دنياست، بيماري در آن فراوان يافت مي شود و بيماران هم چاره اي جز مراجعه به داكتر و معالجه ندارند.

دكتوران با تامين سلامت جسمي مردمان، آنها را براي امور دنيوي و اخروي آماده و سرحال نگه مي دارد.

با توجه به اينكه، علم طبابت به معاجه امراض و حفظ سلامت انسان مي پردازد، داكتر بايد خصوصيات و ريزه كاري هاي نظام خلقت را در بدن مورد مطالعه قرار دهد. بنابراين در طول دوران آموزش و حتي در هنگام درمان به طور

مداوم با پيچيدگي هاي نظام هستي سرو كار دارد و اين مسأله باعث مي شود كه داكتر بيش از ساير افراد توجه به عظمت الهي داشته باشد. زمينه سير و سلوك و كسب معنويت براي او فراهم تر است؛ لذا مسلك طبابت بيشتر از سائر مسلك ها انسان را با خدا مرتبط مي كند. خداوند در قرآن مي فرمايد

«...و مَنْ اَحْيَاهَا فكَأَنَمَا أَحْيَا النَّاسَ جَمِيعاً...» :

يعني هركس انساني را زنده نمايد گويا به همه

انسانها حيات بخشيده است. اطلاق آيه شريفه كه شامل حيات جسماني و مادي هم مي شود، جنبه الهي و ماوراء طبيعي كار داكتر را بيان ميكند. خصوصا با توجه به اينكه بسياري از اسرار خلقت بر انسان پوشيده است و عليرغم

پيش بيني هاي طبي مسير درمان و معالجه مريض مسايلي اتفاق مي افتد كه باعث مي شود انسـان بـه عظمـت خداونـد پي ببرد. در روايات اين نكته نيز آمده است كه كار طبابت را خود خداوند انجام مي دهد و طبيب واقعي خود اوست.

پيامبر گرامي خطاب به داكتري فرمودند:

" الله الطبيب بل انت رجل رفيق" ۱۰ »

يعني خداوند طبيب است و تو رفيق مهربان هستي.

اين حديث و احاديث مشابه آن به اين حقيقت اشاره مـي كنـد كـه معالجـه كننـده واقعـي ذات اقـدس الهـي اسـت. بنابراين داكتر بايد توجه كند كه كار و حرفه او ابزار دست خداوند است

و در واقع دست خداوند متعال به او نيرو و توان معالجه مي دهد و اگـر طبيـب بـه ايـن مسـئله توجـه كنـد در تمـام مراحل معالجه خدا را مي بيند.

حتي ميتوان گفت طبيب تجلي اسم شافي خداوند است كه در عـالم ملـك ظهـور كـرده اسـت. از ايـن نظـر مسـلك طبابت در اسلام حرفه اي مقدس است.

پيشرفتهاي علمي بشري زماني براي نوع بشر مفيد و ثمربخش است كه از پشتوانه اخلاقي برخوردار باشـد. علـم و تخصص بدون بهره مندي از اخلاقيات پاسخگوي نيازهاي فطري بشر نبوده و گاهي نقض غرض اسـت، زيـرا هـر نـوع پيشرفت بايد داراي جهت و هدف باشد و اخلاق به پيشرفت علمي جهت و هدف مي بخشد. پيشرفت علمـي عـاري از مكارم و سجاياي اخلاقي حركت در تاريكي است. اخلاق چراغ هدايت هر حركت محسوب مي شود.

در عرصه طبي نيز اين حكم صادق اسـت و اساسـا حركـت طـب بـر محـور اخـلاق بـوده و پايـه هـاي آن بـر مبـاني اخلاقي استوار است. كوشش براي نجات جان انسانها و اعاده حيات و سـلامت بـه آنـان و معالجـه مريضـان و تسـكين آلام دردمندان و تلاش در بقاي نسل و سالم سازي محيط انساني خود از ارزشهاي اخلاقي است.



# «آیا ترمپ، «گرباچف» ایالات متحده می شود؟

بالاخره پروسۀ انتخابات ریاست جمهوری ایالات متحده به پایان رسید و از میان دو نامزد دیموکرات و جمهوری خواه یعنی خانم «هیلری کلنتن» و دونالد ترمپ» آقای ترمپ برنده اعلان گردید که این علان ظاهراً برای تمام سیاسیون و مردم امریکا و نیز دولتهای جهان غیر منتظره بود، چه از یک سو خانم کلنتون با تجربۀ دراز سیاسی و همچنان زن بودنش در اکثر افکار معتقد به دیموکراسی امریکایی باید و حتماً برنده می شد و از جانبی هم آقای ترمپ نو بودن و بی تجربگی در دنیای سیاست و نیز افکار تند فاشیستی با اخلاق سطح پایین جامعه درظاهر حتی از جانب تیم جمهوری خواه کاملاً پذیرفته و پیشتیبانی نشد و برخی از جمهوریخواهان در جریان کمپاین های انتخاباتی بالآخره از پشتیبانی او دست کشیدند؛ ولی در فردای روز رأی دهی نتیجۀ بیرون آمده از آن کاملاً برعکس این تصورات و تخمین ها رقم خورد.

بدون شک که این تصورات و تخمین های غلط با حقایق و واقعیتهای جامعۀ امروزی ایالات متحده و تحولات خزنده و پنهانی که در آن شکل می گرفت، همخوانی نداشت و فقط یک برداشت سطحی و خوشبینانه از نظام دیموکراتیک این کشور در اذهان مجذوب ارزشهای روبنایی و کلیشه یی این نظام سرمایه داری بود؛ ولی انتخاب «ترمپ» در واقع نشان داد که حقایق بیان ناشده کتمان شده و عقده های خفتۀ ای درین جامعه وجود داشت که با منافقت های دیپلوماتیک و اکت های دیموکراسی و دیگر پذیری خاموش مانده و نادیده گرفته میشد.

جامعه اکثریتی متعصب و تبعیضی ایکه پس از تحمل ۸ سالۀ ریاست یک سیاه پوست مهاجر بر اکثریت سپید اروپائی الاصل دیگر میخواست آهسته و آرام به سوی یک جنگ خاموش نژادی برود که ما مثالهای زیادی ازین تقابل و درگیری های نژادی را در طول ۸ سال ریاست اوباما در شهرهای مختلف ایالات متحده شاهد بودیم.

از سوی دیگر غالباً همه میدانند که در تاریخ سیاسی امریکا یک حزب از دو حزب پرقدرت امریکا(جمهوری خواه و دیموکرات) اکثراً بیش از دو دوره بر سر اقتدار باقی نمانده است و ستراتیژیستان و پالیسی سازان پشت پردۀ این کشور این بار نیز طبق همان سنت، سوای کم کاری یا ناکارائی یک حزب در پیشبرد حزب اهداف آنان در درون و بیرون ایالات متحده اقتدار آنرا با حزب دیگرعوض کرده اند که حالا هم عوض کردند.

حقیقت ناگفتۀ دیگر جامعۀ امریکا که در پیروزی ترمپ عامل اصلی و

بنیادی شمرده شده میتواند روح سرکش قانون ناپذیر، قدرت طلب، برتری خواه و بد اخلاق سپید امریکائیست که در کرکتر، اخلاق و سخنرانی های «ترمپ» متبلور گردید. این روح بازماندۀ مزاج و خصایل آن مهاجران اروپائی ایست که سه چار صد سال قبل به قصد دریافت ذخایر و منافع ثروت در سرزمینهای دیگر به قارۀ امریکا مهاجر گشته و تاریخ طولانی جنگ و درگیری با همدیگر و استثمار، برده داری و سرکوب ساکنین اصلی را به وجود آوردند.

این روح تاریخی سالهای پیش باری هم در وجود «رونالد ریگن» کاوبای یکی از رئیس جمهوران سابقه ایالات متحده تا حدی متبلور شد اما اینزمان «ترمپ» قمار باز که سرمایه اش را با ساختن قمار خانه های بزرگ بدست آورده سمبول برهنه تر این روح ویژۀ امریکائی خوانده شده میتواند. او برای جذب آرای عوام سپید پوست ایالات متحده که ظاهراً از حاکمیت طولانی یک سیاه پوست بر کشورشان نا راحتی بود و از سیل مهاجران غیر اروپائی جهان به این کشور هراسان و عقده مند شده بودند، ضدیتش را با قبول مهاجرین آسیائی، مسلمانان و هم کشور های امریکای لاتین ابراز داشته و وعده هایی برای قطع این روند پس از به قدرت رسیدنش به آنان داد. او مطابق به تقاضای روح زنباره و بی احترام به هویت انسانی زن در سپید امریکائی، با حرفهای زنندۀ خویش در بارۀ روابطش با زنان، توجه بیشتر گروه سپید تبار امریکائی کوچه بازاری و بدمعاش را بخود جلب کرد و باعث شد تا به او رأی دهند. ستراتیژستان پشت پردۀ ایالات متحده که همان سرمایه داران یهود و سازمان های استخباراتی این کشور اند نیز چون سازندگان اصلی رهبری در امریکا هستند درین مقطع حساس زمانی که تحولات جهان میتواند دیگر از ادارۀ یگانه ابر قدرت جهان خارج شده و شکل غیر منتظره یی را برایش بگیرد، ضرورت به این داشتند تا بجای یک دیموکرات ساه پوست ظاهراً نرم مزاج که طبق پالیسی حزب خود نقاب دیموکراسی و بشر- دوستی سوسیالستی را بیشتر بر رخ کشیده و در واقع تا هنوز اهداف ستراتیژیک جهانی این ابر قدرت را با تاکتیک های نرم و کم ترخشن به پیش می برد یک چهره سرزور و بی باک را از جمهوری خواهان زیاده طلب بر سر قدرت بیآورد.

این انتخابات نوعی اعتراض و سرکشی از سیستمی است که پس از فرو پاشی شوروی در اثر جهاد مردم افغانستان، یک قطبی شدن جهان و تسریع ارتباطات جهانی با پیشرفت تکنالوژی بوجود آمده و باعث شده بود تا سیلی از مهاجرین آسیائی، مسلمانان وغیره مردم جهان به سوی ایالات متحده شتافته و خود شانرا امریکائی کنند. این جریان تکثر گرای حاکم بر جهان قریه شده به حدی شدید شد که پالیسی سازان پشت پردۀ ایالات متحده برای تحفظ و افزایش قدرتشان بر جهان حتی مجبور شدند برای مدتی هم مشخص غیر از نژاد خویش را برای قریه داری این قریۀ جهانی بگمارند.

انتخاب«ترمپ» احتجاج و نوعی انقلاب سپیدهای امریکائیست که با سرکوب ساکنین اصلی این مرز وبوم خودشانرا وارثین بلامنازعۀ آن میدانند اینها چه سرمایه داران بزرگ جامعه اند و چه مردم سطح متوسط آن، چه بیکاران و چه اوباشان و بدمعاشان کوچه و بازار همه به «ترمپ» رای دادند و این عمل

نوعی عقـده گشـائی در برابـر شـکلیات دیموکراتیک جبراً حاکم شده در نظام بود و حتـی احـتمال میـرود آن جمهـوری خواهانی هم که در ظاهر از «ترمـپ» بـه سبب رویه و سخنرانی های خشن، زننده و کوچه بازاری اش روی گردانیده بودند، در روز رأی دهی بـه او رأی داده باشـند که در واقع این همبستگی شانرا در زیـر نقاب نارضایتی سیاسـی پنهـان سـاخته باشند

همه میدانند که نظام ایالات متحـده نظام سرمایه است و در راه رسـیدن بـه ثروت و سرمایه از تاکتیک های شـعاری دیموکراسی و بشردوسـتی و حقـوق زن گرفته تا حمایهٔ حکومات مسـتبد جهـان، قانون شکنی، نفاق افگنی و حتی ایجـاد گروه های بد اخلاق و باغی در جهان بـه حیث وسایل و ابزار کار می گیرد.

اما در این مقطع زمانی که جهان و به ویژه قارهٔ آسیا در اثریکه تـازی هـای امریکـا در بحـران عمیقـی فرورفتـه و حاکمیت هشت سالهٔ دیموکرات ها دریـن کشور نتوانست بامزاج نرم و دیپلوماتیک خود ایـن بحـران سـاخته شـده بدسـت خویش را کـاملاً بـه نفـع امریکـا مهـار نموده و گرداننـدگی کند، پالیسـی سـازان پشت پردهٔ ایالات متحده کـه قبـل از هـر ویژگی دیگر ذاتـاً هـمان نـژاد پرسـتان برتری خواه و زیاده طلب امریکائی انـد، غالباً به این نتیجه رسیده اند کـه تحـرک شـانرا در راه رسـیدن بـه اهـداف ستراتیژیک شان در جهـان بیشـتر، اثـر گذار تر و عریان تر سازند.

اینک اذهان مشوش افغانها کـه در پی جواب سوال خود در مورد نام نگرفتن «ترمپ» از فغانسـتان در کمپـاین هـای انتخاباتی اش بود بالاخره بایـد بـه ایـن حقیقت پی برده باشند که افغانسـتان بـا همه طول و عرض بزرگ خویش بـا همـه نفوس میلیونی خـویش همـراه بـا یـک حکومت دست نشـانده و متزلـزل بـرای ایالات متحده میدان اشغال شده ای بـیش نیست که درآن بازی بزرگ خود را بر ضد رقیبـان احتمالـی آینـدهٔ خـویش بـه راه انداخته است،،

پس فی الحال از نظر دولت ایـالات متحده سوال چگونگی جایگاه افغانستان در سیاسـت آینـدهٔ حکومـت جدیـد ایـن کشور مطـرح نیسـت مگـر اینکـه خـود افغانها منحیث یک ملت بیدار بـا تـاریخ طولانی و جغرافیای مهم بجنبند و نشان دهند که کشورشان تنها یک میدان جنـگ خونین و سنگر بی روح کوهستانی برای رسیدن استعمارچیان به منافع مادی شان نه؛ بلکه ملت با عظمتیست کـه میخواهـد به پاخاسته و خـودش را از زیـر چکمـه های استعمار هیبتناک قرن بیست و یکم نجات داده و صدای آزادی خویش را بلند کند.

بدون شک نا آرامیها اعتراضـات و راه پیمانی های جاری امریکائی های غیر متعصب که بعد از انتخـاب «ترمـپ» در این کشور آغاز شده اورا در داخل نیز بـا مشکل بزرگی مواجه سـاخته اسـت ایـن شخص «ترمپ» بخواست خداوند متعـال منحیث گرباچف ایالات متحـده مقـدمات فروپاشی امپراتوری بزرگ این کشـور را فراهم خواهد ساخت و به این سـان ملـت مظلوم اما با ایمان و پولادین افغان شاهد شکسـت فـاحش و اضـمحلال سـومین امپراتوری جهان خواهد بود که با تهاجم بر سرزمین ما و ظلم و جفای بی نهایـت بر ملت ریج دیدهٔ افغان با چنین فرجامی روبرو می شود.





ډاکټر مقدس

# امریکا په افغانستان کې جنګي جنایتونه تکراروي

ځو ورځې وړاندې په هالینډ کې د هاګ په نوم د جرمونو جنايي نړیوالې محکمې ویلي، چې امریکایي پوځیانو او د دغه هېواد ځارګرې ادارې (CIA) په افغانستان کې جنګي جنايتونه ترسره کړي دي.

یادې محکمې په خپل راپور کې یوازې ٦١ تنه یاد کړي دي چې بشري ضد چلن ورسره شوی او پر حقوقو يې تېری شوی دی.

د امریکایي عسکرو او سي آی اې د وحشتونو او جنګي جرمونو ٦١ تنه قربانیان یوازې هغه بېلګه ده چې هاګ نړیواله محکمه پرې اعتراف کوي، په داسې حال کې چې تر ننه زمونږ په هېواد کې داسې شبېه نه تېرېږي چې د امریکایي عسکرو، سي آی اې او د دوی د قراردادیانو او ایجنټانو له خوا دې افغانان له وژلو او ځورولو خوندي وي.

اصل کې واقعیت دا دی چې امریکایي پوځ د ۲۰۰۱ ز کال راهیسې په افغانستان کې د وحشتونو او جنایتونو بهیر پیل کړ، چې تر ننه دوام لري.

خو ددې مظلوم ملت غږ به څوک واوري؟ ځکه چې په افغانستان کې د بهرنیو ځواکونو جنګي جرمونه څه نوې او پټه خبره نه ده، خو تر اوسه هېڅ کومې مرجع دا جرئت نه و کړی چې په افغانستان کې د بهرنیو ځواکونو په تیره بیا د بدمعاشې امریکا سرغړونې وڅېړي.

دا چې امریکا په نړۍ کې یو زورور هېواد دی او د یادې نړیوالې محکمې زور وربانـدې نه رسېږي، نو ددې مظلوم ملت د دفاع غږ به څوک واوري. که چیرته دا ډول څېړنې په کوم بل غربي هېواد کې شوې وای او د جنګي جرمونو څخه يې پرده پورته کړی وای نو نړۍ والو به وربانـدې پنډ پنډ تبصرې کولی.

امریکا زور لري، نړیوال سازمانونه او د بشري حقوقو ادارې او محکمې يې په مخکې بې وسه او چوپ دي په دې کې شك نشته، خو دلته بل ستر لامل دا دی چې امریکا خپلو جنایاتو ته پلمې جوړې کړې، امریکا په افغانستان کې پوځي او سیاسي حضور لري.

پوځي حضور يې د سیاسي حضور تر سیوري لاندې دی. دوی د افغانستان پر حکومت او نظام سیوری غوړولی، امریکا اوس همدغه استدلال کوي، د کندز وروستی بمباري وګورئ چې افغان حکومت د امریکایي پوځ د وحشتونو پړه پخپله غاړه واخیسته.

له بده مرغه د هاګ په محکمه کې پردي ناست دي د افغانانو پر سر د وحشتونو پوښتنه او غندنه کوي، خو پخپله افغان چارواکي بیا نه یوازې پرې چوپ دي بلکې ډېر ځله یې هر کلی کوي او توجیه کوي یې، په داسې حالت کې به د هاګ محکمه څه وکړای شي؟

په دې راپور کې د هغو سلګونو او په زرګونو ملکي وګړو د مرګ ژوبلې په اړه څه نه دي ویل شوي په تیرو ۱۵ کلونو کې د امریکایي ځواکونو په بریدونو کې وژل شوي دي.

بهرنیو ځواکونو په دې پنځلس کلنه موده کې ګڼ شمیر ملکي افغانان بمبار کړي، ګڼ شمیر یې په شپنیو خپلسریو چاپو کې زورولي او وژلي دي.

دوی په خپلو زندانونو کې له تورنو کسانو سره ناوړه چلند کړی دی او هغوی ته یې ډول ډول شکنجې ورکړې دي، بهرنیو ځواکونو زندانیان سخت تعذیب کړي دي او ان په ځینو مواردو کې کلونه کلونه په زندان کې پرته له دې چې جرم پرې ثابت شوی وي، ساتل شوي دي.

امریکایي ځواکونو په افغانستان کې په خپل پوځي ماموریت کې ټول بشري او جنګي قوانین تر پښو لاندې کړې دي، تر ټولو بده دا چې د بشري سرغړونې زیاتره پېښو ته یې د «انساني تېروتنې» نوم ورکړی دی او یا هم دا ډول قضیې په خپله د امریکایانو له لوري څېړل شوې دي او بیا یې یوه پیکه ښښنه غوښتې ده.

دا چې هاګ د جنایي جرمونو نړیوالې محکمې په خپل راپور کې د یو څو کسانو سره د امریکایانو په پټو زندانونو کې د ظلم او وحشت خبره شوې څومره به بې پرې وي؟ ځکه چې دا هم د غربیانو اداره دي، نو د یو مسلمان وینه تویول به ورته څه ارزښت ولري که نه! څرګنده ده چې هاګ هم په خپل راپور کې د امریکایي بدمعاشانو څخه ویره څرګنده کړې ده، کنه په تېر یوه کال امریکایي پوځیانو په افغانستان کې په سلګونو بې ګناه افغانان وژلي، په زرګونو نور یې بندیان کړي او ځینې نور یې ټپیان کړي هم دي چې له هیچا دا جرمونه او سرغړونې پټې نه دي.

تیر کال امریکایي ځواکونو په کندوز کې د بې پولې ډاکټرانو پر روغتون برید وکړ، چې د ډاکټرانو په شمول یې په لسګونو ناروغان، ښځې او ماشومان پکې ووژل، په تیره میاشت کې یې د ننګرهار ولایت په شینوارو ولسوالۍ کې د بې ګناه حاجي صاحب په کور بمبار وکړ، چې په کې یې تر ۳۰ کسان مړه او ژوبل کړل.

همدارنګه یې په یوه چاپه کې د کامې ولسوالۍ ملکي وګړي ووژل، په ارزګان او کندز کې یې افغان نظامي قوتونه او ملکي وګړي ووژل، په دا نړدې وختونو کې یې په کندز کې په ملکي کورونو بمبارونه وکړ او د ښځو او ماشومانو په ګډون یې تر ۳۰ زیات بې ګناه مظلوم افغانان په شهادت ورسول؛ خو چارواکو یې په اړه سوڼ هم ونه کړ، د ښځو د حقوقو غوښتونکي یې هم په اړه چوپه خوله شول، نو اوس د هاګ محکمه د امریکا کوم جرم له مونږ څخه پټوي؟!



د جرمونـو نړیوالـه محکمـه او نـورې نړیـوالې عدلي او قضایي ادارې باید په افغانستان کـې شـوي جنګي جرمونه په بې پرې او مستقل ډول وڅېړي او عاملینو ته یې هماغه ډول سزا ورکـړل شي، تـر څـو پـه راتلـونکي کـې دا مظلـوم او بـې چـاره ولـس د زورواکو خونخوارانو له منګولو وژغورل شي.

دې بې چاره او مظلوم ولـس لپـاره دا کفایـت نـه کـوي چې یوازې د جنګي جرمونو په اړه نیم نیمګړی راپـور خپـور شي او بشري حقوقو ټول مدعیان یې په اړه چوپه خولـه شي، بلکې په تېرو پنځلسو کلونو کې په جګړه کې د ټولو ښـکېلو اړخونو له لوري شوي جرایم بې پرې څېړنې ته اړتیا لري او د عدالت د تامین لپاره عاملینو ته یـې بایـد جـزا ورکـړل شي او نور دې هېواد ته د امن راوسـتلو کوشـش وشي، نـه د بهرنیـو لښکرو راوستل.

د ولسي جرګې غړیو هم یاد راپور یو ښه نوښت بللی او ویلي یې دي، چې په افغانسـتان کـې امریکـایي پوځیـانو پـه زرګونو جنګي جرمونه ترسره کړي، چې بایـد پـه اړه یـې بـې پرې څېړنې وشي او په اړه یې له امریکا ځخه پوښتنه وشي.

د ولسي جرګې غړی عبدالستار وایي، چـې د بهرنیـو پـه بندي خانو کې اکثره بندیانو سره ظلم شوی، مادي او معنوي ضرر ورتـه رسـیدلی دی، دوی وهـل شـوي ټکـول شـوي او عزت یې تر پښو لاندې شوی او هـیڅ ګنـاه یـې هـم تثبیـت شـوې نـه ده. دوی بایـد خپلـو کورونـو تـه ولېـږل شي او دا ظلمونه باید جبران شي.

همدارنګه د حق غوښتنې ټولنیزې ټولنې مشرې مېـرمن ویدا د امریکا له خلکو غوښتي، چې په افغانستان کې د خپلو پوځیانو د خپلسرۍ مخه ونیسي.

د نوموړې په وینا "۳۴ هېوادونه چې د امریکا په مشرۍ افغانستان ته راغلل، دوی په خپله پـه جنـایتونو کـې شریـک دي، د بېلګې په ډول دوی په دې نوم چې طالبـان وژنـو، پـر ځای یې شپږ میاشـتنی کـوچني ماشـومان وژني یـا هـم یـوه نالوستې مېرمن وژني.

ویدا وایي، چـې مـونږ یـوازې دا غـواړو چـې د امریکـا خلک پـر خپـل حکومـت فشـار راوړي د هغـو چـارواکو او پوځیانو مخه ونیسي چې زمونږ د بې ګناه او بې پناه خلکـو د مرګ لامل ګرځي.

د افغانستان او امریکـا حکومتونـو د جرمونـو د نړیـوالې محکمې تړون نه دی لاسلیک کړی.

د هاګ د جرمونو نړیواله محکمه پـه ۲۰۰۲ ز کـال کـې جوړه شوې ده او د نړۍ ۶۰ هیوادونو د یادې محکمې اساس نامه لاسلیک کـړې او منلـې ده، چـې د جګـړې جرمونـه پـه ګوته او څېړي.

# دا څه حــال دی؟

ق: خالد

د هیواد په هر ولایت کې د اختطافچیانو باندونه سرګرم دي، په خلاص مټ لګیا دي له هره واټه انسانان تښتوي او په بدله کې د تښتول شویو له کورنیو په میلیاردونو پیسې غواړي.

اختطافچیان یو نفر دوه نه دي، بلکې یو اوږد ځنځیر دی چې د هیواد په هر ښار او هره برخه کې منظم ګروپونه لري، تر شاه یې قوي لاسونه دي او د نظام د رأس خلک یې ملاتړي دي.

د اباسین ماشوم د قاتلینو له ډلې یو یې په ارګ کې دنده درلوده، د هیواد مشر ـ ترځنګ به ولاړ و او د فراهي ماشوم په اختطاف کې هم د ملي امنیت کارمندان شامل دي.

د ملي امنیت ریاست چې تر دې مخته یې هم په بازارونو کې ډیروَر او په اسلامي لباس ملبوس ځوانان نیولي او بیا یې د پیسو پر بدل ایله کړي؛ اوس یې دا کانې شروع کړي.

د ملي امنیت وحشي او بدنام ریاست د هر اختطافګر سره لاره لري، ټول هغه نفر چې اختطافګران یې نښه کوي د ملي امنیت د تورو ښیښو په موټرانو کې د ښارونو له منځه ویستل کېږي او بیا د اختطافچیانو منګولو ته سپارل کېږي.

دا هغه لومړني معلومات دي چې د تښتول سویو له کورنیو اورېدل کېږي؛ که په لوړه کچه څېړنې وکړای سي، طبعي ده چې ددوی تر شاه هم غوښن لاسونه وجود لري څکه یې پر اړه جدي ګامونه نه اخیستلی کېږي.

په ټوله کې ددې نظام هر چارواکی په یوه نه یوه ډول، پر غیرقانوني دندو کې لتاړ دي. څوک د شرابو تجارتونه کوي، څوک په انساني قاچاقو کې ککړ دي، څوک د محکو په غصب اخته دي، څوک د حکومت او ملت شتمنیو ته تمبه دي بېخرته یې چور کوي، څوک د تور بازار کاروباریان دي او څوک یې د کابل بانک څخه له کاره لوېدلې پیسې په نیمایي بیه رانیسي ـ او بیا ځل یې بازارونو ته عرضه کوي.

اوس کـه د اختطافچیـانو د اعـدام غوښتنه زور اخلي؛ اړینه ده چې د نظام د رأس خلک له یوه مخه په دار وځړوَل سي او داسې کېدل ممکن نه دي.

پښتانه متل کوي چې لانجه دې د قاضي سره سي، فیصله به پر چا کوې؟

دمګړی ددې ملت لانجه له قاضي سره ده، د ټولو نادودو مرتکبین ددې نظام د رأس خلک دي.

په زنا کې دوی لتاړ دي، د لواط غوښتنه دوی کوي، رشوت دوی اخلي، په اختطاف کې ددوی لاس دی، په ښوونځي کې ددوی اربکیان له هلکانو جامې باسي، له ښځینه ښوونځیو ددوی عسکر نجونې پورته کوي، او په ډمخانو او قمارخانو کې ددوی قومندانان او ټوپکسالاران ناست دي.

اوس ګیله له چا وچا ته وکړو؟ که له یو چا سره جنسي ـ تېری وسي، چې پلټنه یې وکړې د وکیل صیب څوی به تېری کړی وي، یو څوک په ډک بازار کې د یو چا له لوري بې آبه سي او ټول خلک چوپ ولاړ وي.

چې بغ وکړې چې په خلکه را مخ ته سئ؛ ځواب به یې دا وي چې دا د فلانکي خان صاحب! څوی دی، پام چې حرکت ونکړې

ښه نو دا ملت به اخر څه کوي؟

په قندهار کې یوه خور وډبوَل سوه، عفت یې تالا سو، کور یې چور سو. بلها نعرې یې ووهلې، له هرې خوا مایوسه سوه، طالبانو یې فریاد واورېد او مرتکب یې د ښار په منځ کې تنې ـ تنې واچاوه.

په ننګرهار کې یوې ښځې له دې امله له مېړه طلاق وغوښت چې مېړه یې له نورو نجونو سره ناوړه تارونه اچولې ول، مېړه یې انکار وکړ.

ښځه قضاء ته ولاړه، د قضاء سپین ږیري قاضي له همدې مظلومې ښځې د پرېکړې پر بدل د زنا طلب وکړ!.

دا ښځه وایي چې چاته عارضه سوې یم، د زنا طلب یې را څینې کړی؛ مجبوره سوم د طالبانو محکمې ته ولاړم.

چې خبره اوږده نسي ـ لنډه به یې راونغاړم.

په دې اداره کې داسې څوک نسته چې ددې ملت مال ـ هال ته غل نه وي، که یې شاه لید وپلټئ له مشره تر کشره ددې ملت چور ـ تالان ته له خارجه راوستل سوي او هغه څوک چې له دې ځایه ورسره ملګري سوي د ' ملا مر مال یې تالا' په نیت ورغلي.

که مونږ له دې ناخوالو ځان ویستل غواړو، له یو مخیز او سرتاسري پاڅون پرته بله لاره نسته، دلته رمه لیوانو ته سپارل سوې، د ځان ژغورل تر ې خورا چالاکي، مهارت او بېړه غواړي.

ترڅو چې د لیوانو له واکمنۍ ځان خلاص نکړو تر هغې به مو مال او هال په خطر کې وي او هره ورځ به د یوې نوې نادودې دردونکي خبرونه اورو.

د سوکاله، خوشحاله او اسلامي افغانستان پر هیله!



# ملا علي قاري رحمه الله څوک ؤ ؟

رفيع الله برهاني

شيخ ملاعلي قاري رحمه الله په نړيواله سطحه يو شي القرءان ، محدث ، فقيه او پياوړی خطاط تير شوی دی چې د زهد او تقوی يوه نمونه وه د عربي ملکونو ډير برجسته علماء د ده اقوال او ليکنې د مأخذ په توګه کاروي .

ملاعلي قاري د افغانستان د هرات په ولايت کې پيدا شوی دی ، هغه د قرآنکريم حفظ د وخت مشور قاري مولانا معين الدين بن حافظ زين الدين څخه حاصل کړ او نور اسلامې علوم يې د هرات د ښار له علماء کرامو څخه حاصل کړ .

هغه وخت چې کله د هرات ښار د ايران د صفوي حکومت د يرغلګرو تر يرغل لاندې راغی او صفوي حکمرانانو د توري په زور پر خلکو باندې خپل مذهب تپلو او د هرات ډير مهم او برجسته علماء کرام يې په شهدادت ورسول او په خلکو ژوند تنګ کړ .

نو ملا علي قاري د وطن پريښودو ته مجبور شو خپل وطن يې ترک او د مکې مکرمې په لورې روان شو .

علامه ملاعلي قاري په مکه کې د علم قرائت ته خاصه توجه وکړه او اوه قسمه قرائت يې د مکې له برجسته علماؤ څخه زده کړ او د قرائت سند يې تر لاسه کړ چې ملاعلي قاري په اړه وايي : واما سندی فی تحقيق القراءت وتدقيق الروايات فعلى المشايخ العظام والقراءالكرام من اجلهم فی هذا الفن الشريف واكملهم شيخ القراء بمكة الغراء وحيد عصره وفريد دهره العالم العامل الصالح الكامل الشيخ سراج الدين اليمنی الشوافی بلغه الله سبحانه المقام العالی الوافی وجزاء عنی وعن سائر المسلمين الجزاءالكافی.

ملاعلي قاري د احاديث علم په هرات کې د پياوړې عالم شيخ الاسلام هروي : شيخ احمد بن يحيی بن محمد سعد الدين مسعود بن عمر تفتازاني هروي څخه حاصل کړی ؤ ، او په مکه مکرمه کې د حديث علم له ستر محدث شيخ زين الدين عطيه بن علی سلمي مکی څخه حاصل کړ چې ملا علي قاري مرقاة شرح مشكاة المصابيح او همدارنګه رساله د القوارض کې شيخ زين الدين د استاذ، مولانا او سيدی په القابو نومولی دی .

هغه همدارنګه د هغه وخت له مشهورو محدثينو لکه : سيد زکريا علی بن حسام الدين المتقی الحنفی، شيخ عبد الله سندی، شيخ شهاب الدين ابن حجر الهيتمی او حافظ شيخ قطب الدين مکی حنفی څخه حاصل کړي دی ، لکه څنګه چې په علم حديث کې ملاعلی قاري پوره مهارت لرلو همداسې يې په فقه کې هم مهارت لرلو .



ملا علي قاري په نړی کې د احنافو د ترجمان حیثیت لرلو چې ده حنفي فقه په قرآن او سنتو تشریح او توضیح کړی ده او فقه کې ده د احنافو مسلک ته ترجیح ورکوله .

ډیرو بزرگانو ملا علي قاري د ۱۱ قرن له مجتهدینو څخه بللی دی .

علامه عبد الحی لکهنوی وایي:شیخ شهاب الدین رملی اوملا علی قاری د یوولسم قرن له مجتهدینو څخه وو.

همدارنگه ملا علی قاري د وخت له برجسته خطاطانو او لیکوالانو څخه ؤ چې ډیر ښکلی لیک لیکلو شیخ محمد طاهر کردی مکی وایي :کان یکتب الخط الحسن والغالب أنه أخذ الخط عن الشیخ حمد الآماسی وکان یکتب فی کل سنة مصحف واحدا ویبیعه ویصرف ثمنه علی نفسه.

هغه خط له شیخ حمدالله اماسی څخه زده کړی ؤ ، د کال به یي یو قران مجید لیکلو او د هغه د پلورلو په پیسو به یې د کال خرچ او مصارف تأمینول .

شیخ عبد الحق محدث دهلوی یې په اړه وایي :کان رجلا من اهل العجم،جمیل الخط،یقال له الملا علی قاری إشتری منه الشیخ علی المتقی نسخة من تفسیر الجلالین التی کتبه بخطه الحسن باثنی عشر جدیدة اعترفا ..............

شیخ علی متقي یو له عجمي غوره خطاطانو څخه په نوم د ملا علی قاري وو چې د جلالین تفسیر یي په ډیر ښه خط لیکلی ؤ چې د هغې وخت په دولسو سکو مې واخست ، حال دا چې شیخ علی متقي د هغه په ښه لیکلو کې ډیر زیار او کوښښ کړی وو او ما چې په کوم قیمت اخستی وو تر هغه نه د زیات قیمت لائق ؤ. زاد المتقین.

ملا علي قاري په علم تفسیر ، حدیث ، قرائت ، فقه ، میراث ، تصوف ، تاریخ ، ادب ، نحو او نورو کې تر ۱۲۵ زیات کتابونه لیکلی دي چې مشهور یې په لاندې ډول دي:

۱- مرقاة المفاتیح شرح مشکاة المصابیح ۲-فتح باب العنایه بشرح النقایه ۳-شرح الوقایه ٤-ارشاد الساری فی المناسک ٥-الثمار الجنیه فی أسماء الحنفیه٦-شرح ثلاثیات بخاری۷-نزهة الخاطر الفاترفی ترجمة الشیخ عبد القادر۸-الناموس۹-شرح فقه اکبر۱۰-رسالة فی ترکیب لا اله الا الله۱۱-فرائد القلائد۱۲-حکم سب الشیخین وغیرهما من الصحابة۱۳-شرح عین العلم............

شیخ ملا علي قاري رحمه الله ۱۰۱٤ کال د شوال په میاشت کې په مکه مکرمه کې وفات شو او په جنة المعلی کې خاورو ته وسپارل شو ( انا لله و انا الیه راجعون ) .

کله چې د ده په مرگ باندې د مصر د الازهر علماء خبر شول په ده پسې یې د جنازې غایبانه لمونځ ادا کړه او د ده روح ته یې دعا وکړه .

# د روسیې وحشت ، د امریکا منافقت او د شام مظلوم مسلمانان

حسن مومند

داڅوکرښې چې لیکم لاهم د شام په تر ټولو ستر ښار حلب کې د تباهۍ ، بربادۍ او د ستر قتل عام دردونکې اوبوګنونکې لړۍ رونه ده .

په حلب کې چې دخورا بې وسومظلوموسلمانانوپرضدکوم وحشت روان دی داد ملګرو ملتونو اداري او د امنیت دشورۍ په نوم ددې اداري دتر ټولو ځواکمنې څانګې په ګډون د ټولې انساني ټولنې د سراسرناکامۍ،بې وسۍ او بې حسۍ ډېرسترنوۍ ژوندی تصویر دی

په تېرو ۵ کلونو کې چې دشام د کورني جنګ په اړه د امنیت شورۍ څومره غونډې رابللی دي شاید په اوسني تاریخ کې به یې ساری نه وي خو ددې تر څنګ چې د شام د ستونزې د حل په موخه وړاندې کړای شوي څومره پرېکړه لیکونه د روسې له لورې ویټو شویدي داهم په نېږدې ماضي کې ساری نه لري.

ددې لړۍ هغه وروستی پرېکړه لیک هم روسې ویټوکړ چې هدف ترې یواځې موقت اوربند ؛پر حلب ښار د روسې او بشارالاسدد فوځ د بمبارۍ ودرول ؛ سونو زرو محصورو وګړو ته خواراکې مواداودوا وررسول او ټپیانو ته د وتلو موکه ورکول و.

داسې ښکاري چې روسیه به تر هغې پر حلب بمبار او د دې ښار د مسلمانانو قتل عام روان ساتي تر څو چې دا ښار د بشارالاسد دفوځ تر قبضې لاندې نه وي راغلی.

د عربو د بهار په نوم چې د دولتونو پر ضد د ولسونو د پاڅونونو په لړ کې دشامي ولس اکثریت داحتجاج لار خپله او د انتخاباتو له لارې یې د اکثریت د نماینده دولت غوښتنه وکړه نو هغه مهال د بشارالاسد د دولت پر ضد پاڅون ته د هڅولو په موخه امریکا او نور لویدیځ دخپلو مکارو رسنیو له لارې په شاد شامي ولس د ټپولو ډېرې هڅې وکړې؛ ویل به یې چې اوس ددې وخت رارسېدلی دی چې په شام د جابر بشارالاسد واک ته د پای ټکی کېښودل شي او پدې هېواد کې یو منتخب دولت رامنځته شي خو چې کله بشارالاسد د اداري له لورې پر ولس د وحشت لړۍ پیل شوه او په شام کې هغه کورنی جنګ رامنځته شو د کوم په اړه چې کابو ټولو شنونکو وړاندوینه کوله نو بیا نه امریکا وه، نه نور لویدیځ و، نه دشامي ولس حمایت و او نه هم داسدی ملېشو د وحشت نه دمظلومو شامیانو دژغورنې کوم مؤثر اقدام و.

هو! د امریکا او نور لویدیځ په رسنیو کې به چې د پاڅون کونکو په حمایت او د بشارالاسد د اداري پر ضد تبلیغات کېدل او دا به ویل کېدل چې نور د بشارالاسد دواکمنۍ د پای ته رسېدو او د ولس د خوښې سره سم د منتخب دولت د راتلو وخت رارسېدلی دی نو پدې زهرجنو خبرو هم بشارالاسد دولس پر ضد په خپل وحشت کې ډېروالی راوست او هم د سیمې مهم هېوادونه په یو نه یوه نوع دې جنګ کې راښکېل شول.

یو لورته ایران وچې د بشارالاسد د دولت د بچ کولو په موخه یې هم خپل فوځیان شام ته واستول او هم یې د شیعه ملېشو نورې ډلې چې حزب الله یې په سر کې و د بشارالاسد په حمایت کې جنګ کولو ته تیارې کړې .

بل لور ته عربي نړۍ وه چې د ایران مداخلې سخته ورخطا کړې او غصه کړې وه ؛د بشارالاسد د رژیم پر ضدد راپورته شویو سنیانو حمایت یې پیل کړ ؛هم یې له مختلفو لارو د پاڅون کونکو مرستې وکړې او هم یې د بشارالاسد نه وغوښتل چې له واک نه دې لاس په سرشي.

له کومې ورځې نه چې د شامي ولس د غوښتنې پر ضد د بشار الاسد اداري عکس العمل ښکاره کړ نو له هماغه ورځې نه دلته دکورني جنګ بنسټ کېښودل شو خو چې کله پکې د ایران او د سعودي په څېر هېوادونو مداخلې رامخې ته شوې نو دې جنګ د شیعه او سني فرقه ایز جنګ شکل غوره کړ ،هغه فرقه ایز جنګ چې بنسټ یې لا له وړاندې په عراق کې ایښودل شوی و.

د عراق د پخواني لومړي وزیر نوري المالکي نااهله اداره چې ددې شخړې په مخنیوي کې څومره پاتې راغلی وه په هماغه اندازه د بشارالاسد اداري ددې شخړې په زیاتولو کې بې رحمي ښکاره کړه.

ډېر شنونکي پدې عقیده دي چې د شام پاڅون کوونکي د مسلحی مبارزې طرفداران نه وو بلکې د بشار الاسد اداري په زور مسلحې مبارزې ته اړ ایستل ، له یوې خوا یې وړباندې له حده زیات تشدد وکړ او له بلې خوایې دوئ ته د بېرون نه د وسلو او مجاهدینو د راتلو لار ،و نه نیوله او دا ددې لپاره چې که کله د بشار دولت ددوئ پر ضد تشدد ته زور ورکوي چې نړۍ یې ملامت نکړي بلکې له نړۍ پدې کریډیټ واخلي چې د تروریستانو پر ضد عملیات کوي، چې همداسې وه هم شول ، د لویدیځ یو شمېر سیاسی مشران او رسنۍ چې د بشارالاسد پلوي کوي همدا دلیل وړاندې کوي چې د بشارالاسد فوځ ځکه د حمایت وړ دی چې دالقاعدې او داعش په نوم د سترو تروریستانو پر ضد جنګېږي .

بشارالاسد په خپل فوځ ښه ډېرو فوځې وسایلو او ښه اقتصاد مغرور و او هیڅ ګومان یې نه کاوه چې کومه جهادي ډله به ګیني دومره ځواکمنه شي چې د هېواد یوه کوچنۍ سیمه به په زور تر خپل کنترول لاندې راولي ، خو د دوئ د تمو خلاف په ډېرې تېزۍ په شام کې مجاهدین منظم شول ، د اسد فوځونو یې د ځپلو ډېر جدي اقدامات وکړل خو هیڅ ګټه یې ونکړه او نړۍ ولیدل چې په ډېر لږ وخت کې مجاهدینو ستړې سیمې او لوی ښارونه ونیول .

د شام مجاهدین د شریعت اصولو او د جهاد اهدافو ته ډېر ژمن ، د هېواد خیرخواه اوپه ولس ترحم کوونکي وو نو ځکه یې په ډیرې تېزۍ ولس کې محبوبیت پیدا کړ اودا امېد ډېر مخ په قوي کېدو شو چې مجاهدین به په ټول شام واکمن او د بشارالاسد د ظلمونو نه به شامي ولس نجات ومومي خو له بده مرغه چې په شام کې داعش سر راپورته کړ اود شام ټول مجاهدین یې خپلې اتباع او د ابوبکر البغدادي سره بیعت کولو ته راوبلل او هر انکار کوونکی یې واجب القتل وګڼلو؛ د شام خپلو مجاهدینو ډېرې هڅې وکړې چې د جهادي صف وحدت باقي پاتې او دکومو اهدافو لاسته راوړلو لپاره چې مبارزه پیل شویده هغه اهداف تر لاسه شي خو پرې ونه توانېدل ، ستر خپلمنځي تصادمونه هم رامنځته شول چې له امله یې مجاهدین کمزوري او تر کنترول لاندې یې د ټول هېواد د راتلو امېدونه مخ په کمېدو شول .

دا له شکه وتې خبره ده چې لویدیځې نړۍ ته نېږدې او په جغرافیایي لحاظ خورامهم هېواد شام

کې د مجاهـدینو وجـود، د تمـو خـلاف زیاتوالي او تېزو جهـادي برياولويديځـه نړۍ ،امريكا او روسـيه سـخته ورخطـا کړی وه ؛د ځانونو لپاره يې لـوى خطـر ګڼلو؛ ټولويې له منځه تلل غوښتل او هـر لوی ځواک هڅې کولې چې د مجاهـدینو د له منځه وړلو په پلمه په سيمې کې خپل نفوذ زيات او ددې ځای اقتصادي منـابع قبضه کړي .

سره لــه دې چـې د بشـار الاســد اداري د بې ګناه انســانانولوی قتـل عـام وکړ خو امریکا ،بې پر ضد یو بز کولو ته هم نه وه تیـاره خـودروم سـمندر کـې دامريكالـه موجـودو کښـتيو دشـام پـر مجاهدينو او عامو مسلمانانو ښی ډېـرې بمبارۍ وشوې چې پکې ښه ډېر بې ګناه مسلمانان له منځه ولاړل .

اوس همدا امريكا شـاته شـويده او په حلب او نورو ښـارونو کـې بـې ګنـاه مسلمانانو د قتل عام لړۍ روسيه مخ پـه وړاندې بوځي چـې پخپلـه شـاته كېـدل اوروسي ته میدان پرېښودل هم ځـانګړی وجوهـــــــــات لـــــــــــري .
اصل خبره دا ده چې په منځنـي ختـيځ کې چې پخواد امريکا څـومره لیوالتیـاوه اوس هغومره نده پاتې اودا ځکه چې لـه يــوې خــوا د منځنــي ختـيځ د ډېـرو هېوادونو د تېلو چيني مخ په وچېـدو دی

او له بلې خوا امريكا ته په خپل هېـواد او بهر نړۍ کې د تېلـو نـوې منـابع لاسـته ورغلی دی ، د دې تر څنګ له تېلـو پرتـه له ډول ډول نورو انرژيو کار اخستل هــم په نړۍ کې عام شويدي نو امريكا اوس د منځني ختيځ تېلو ته ځان محتاج نه ګڼي .

له دې هم زیاتـه مهمـه دا ده چـې دټولې اسلامي نړۍ او په ځانګړې ډول د منځني ختيځ پـه اړه د امریکـا تېـره ۲۵ کلنه پالیسي سخته ناکامه، لـه تـاوانونو ډکه او بدنامونکی وه ؛ نو له دې امله چې د منځني ختيځ په اړه يې پالیسي ناکامـه وه او بل لور ته دلته خپلې ګټـې هـم نـه ويني نو د منځني ختيځ او نورې نېـږدې سيمې سره يې لېوالتيا مخ پـه کمېـدو ده نوګڼ داسې ګامونه يې پورته کړل چې له سيمې نه د امريکـا د شـاتګ نښــې ګڼـل کېږي.

د منځني ختيځ نه د امريكا د شاتګ په صـورت کـې چـې دلتـه کومـه تشـه رامنځته کېدونکی ده روسـيه ورتـه ښـه متـوجې ده او غـواړي چـې د چـين پـه ملګرتیاداتشه ډکه کړي .

امريكا په شام کې دروسـانود روان وحشـت سره پـه ښـكاره خپـل سـخت مخالفت ښکاره کوي اودروسي پر ضد په مسلســـل ډول د منافقـــت نـــه ډکـــې

څرګندونې کوي نو ځکه ډېر خلـک فکـر کوي چې امریکا په شـام کـې دروسـي دروانوعملیاتو سـخته مخالفـه ده ؛ خـو حقیقت داسی ندی ، امریکا په ښکاره پـه حلب او د شـام پـه نـورو سـيمو کـې د روسانو دروان وحشت پر ضد څرګندونې کوي خو روسان چې څه کوي په حقیقت همدا د امريكا غوښتنه ده .

اصل خبره دا ده چې د امريكا تېـر ۲۵ کلن بهرنـي سیاسـت سـخت ناکـام سیاست و چې د امريكا پـه ولسمشرـيزو انتخاباتو کـې د ټرمـپ بريـالبتوب ددې ناکـامۍ ژونـدی دلیـل دی ؛دې ناكـامې بهرنۍ کړنلارې امريكا په نړۍ کې سخته بدنامه او په مسلمانانو کې سخته منفوره کړه؛ اسلامي نړۍ خو اسلامي نړۍ ده دا مريكا خپل لويديځوال اتحاديان هــم پـه امریکا سخت بې باوره دي نو ځکه هغــه هېوادنه هم ورو ورو روسانو ته لاسـونه وراوږدوي چې يو وخت د امریکا متـالي متحدین ګڼل کېدل ؛ روسان د دوۍ ټولـو دوستۍ ته لبیک وایې ځکه چـې اوسـنۍ روسيه يو ځل بياهغه مقام تر لاسه کـول غواړي کوم يې چې لــه ۸۰ يمـې كليـزې وړانـدې پــه نـړۍ کـې درلودلـو او پـر افغانستان د یرغل نه پس يې دلته د ماتي خوړلو له امله له لاسه ورکړ.

امریکا خپل لویـدلي حیثیـت او پـه نړۍ کې د چین او روسې نفوذ اندېښمنه کړیده نو ځکه په ډېر دقـت ټـول حـالات څاري ؛د امریکا لپاره اوس دا ډېره گرانـه ده چې په نړۍ کې بیا خپل مقام حاصـل او د نړیوالو اعتماد تر لاسه کړي نو ددې لپاره هڅې هم نه کوي، بڼوله توجو یـې د چـین او روســې د نفـوذ او پـر مختـگ مخنیوي او دې دواړو هېوادونـو تـه پـه نړۍ کې د لویـو سـتونزو راپیـدا کولـو لورته را اړولې ده او پـه نـړۍ کـې ددې دواړوهېوادونولپـــاره دلویوســـتونزو راپیداکولوپه موخه  نوي پلانونه جوړوي چې د شام په روان جنـگ کـې د روسـې ښکېلتیا د روسې پر ضـد دامریکـادپلان کامیابي یالږ تر لږه د غوښتنو پوره کېدل څرگندوي .

څه دا نه وایم چـې پـر حلـب او د شام په نورو سیمود روســانو بریدونـه د امریکا په حکم روان دي ، څه دا منم چې داهرڅه روسانود خپلو موخو لپـاره پیـل کړیـــدي او غـــواړي چـــې لـــه دې لارې مجاهدین وځپي او دبشارالاسدهغه دولت لـه ســقوطه وژغــوري کــوم چـــې ټـل دروسانودوســتی اوگټوتــه ژمــن پــاتې شویدی اودکوم سره چې لاهم روسان پـه سیمې کې خپلې ټولې گټې تړلې بولي .

روسیه به دبشارالاسـد د اداري پـه ژغورلو واتوانېږي که نه ؟ دا ځانته خبره ده خو د سقوط نه دبشارالاسد د دولت د ساتنې لپاره په جنگ کې ځان ښـکېلول د روسانو ډېره د حماقت نه ډکه پرېکړه وه او ډېر ژر به پوه شي چې دا ډېره تاواني سودا وه.

امریکا چې د۹۰ یمې لسیزې په پیل کې دخلیج دړومبي جنـگ پـه تـرڅ کـې داسلامي نـړۍ پرضـد دجنـگ ډگـر تـه راووتلـه او تـردې دمـه یـې دعـراق اوافغانستان په شمول پـه گڼـو اسـلامي هېوادونـو یرغلونـه وکـړل نـو امریکـا داسلامي نړۍ په هر هېـواد کـې دومـره وحشت ښکاره کـړ چـې دروسـانو ټـول وحشتونه یې له خلکو هېر کړل او داسـې یې بدنامه او منفوره کړه چـې دروسـانو سره دمسـلمانانو نفـرت یـې زړه کیسـه وگرځولـــه خـــو اوس چـــې روســـان دبشارالاسد په مشرۍ کـې دیـو ظـالم او وحشي دولت ژغورلو او دداعش له منځـه وړلو نوم اخلي خو په ترڅ کې یې دحلـب ښار کې پرمظلومو ولسي وگـړو درانـده بمونه  غورځوي؛ ښـوونځي، جوماتونـه، روغتونونـــه او کورونـــه پـــه نښـــه کوي؛دځوان،بوډا،کـــوچني او مېرمنـــې دامتیاز پرته په یویو بمبار کې په ســونو بې گناه مسلمانان وژني؛ددې ښـار ټـول مظلوم او بې چاره انسانان یې پدې ښـار کې محاصره کړیدي ؛ نه یې دښار نه وتو ته پرېږدي او نه ورته خوراکي تـوکي او دواگـــانې راپرېـــږدي او پـــه خـــوراکي توکیوبار دې ښار ته راتلونکې قافلې هـم په نښه کوي ؛ دحلب ښار یې په کنډوالـه بـدل کړیـدی ؛ دا ښـارهیڅ داسـې نـه ښکاري لکه چې دابه په نېـږدې مـاضي کې کوم آبادښاروبلکې  پـه نړیوالـو دوه جنگونو کې دښکېلو هېوادونـو یـو وران ښار ښکاري.

دا ډېر لوی وحشت دی که روســانو دې وحشت ته ژر دپای ټکي کېنښــود او همداسې یې جاري وساتلو نو په اسلامي نړۍ کې به سخت منفور ؛ بدنام او دټولو مسلمانانو سره به په دښـمنۍ اختـه شي چې دابه ورته نه جبرانېدونکي  تاوانونـه ورسوي؛دا اوس په روسانو ده چـې روان وحشـت تـه دپـای ټکـي گـدي او کـه دضـــعیفې،ناکامې او منفـــورې اســـدي اداري دبچ کولو په تمه دنړۍ دټولو ژمنو مسلمانانا دښمني په سر اخلي.

عمري

# بخښنه کول ولې زموږ ژوند سموي؟

ستونزه دا نه ده چې ته هغه نه بخښې، بلکې ستونزه داده چې ته ددې وس او توان نه لرې چې هغه وبخښې. يعنې ضعيف او عاجز يې. دومره توان او طاقت نه لري چې د هغه تر خطاو ورتيرشې. تاسو بايد په لومړي قدم کې د بخښې معنا او مفهوم په ښه ډول سره وفهموي چې د اشتباه او خطا په وړاندې بخښنه کول ممکن دي که نه.

او نور خلک له تاسره پردې بخښنه کولو باندې مقاومت کوي کنه . کله ناکله ستاسو په ذهن کې دغه اشتباه ځای ونيسي چې ګواکې بخښنه کول ستاسو وظيفه او دنده ده تاسو به حتما نورو خلکو ته بخښنه کوئ.

همدغه اشتباه يوه ستونزه ده. تحقيقات دا ښيي هغه خلک چې نورو ته بخښنه کوي هغوی تل خوشحاله او خندانه وي نسبت وهغو ته چې بخښنه نه کوي. کينه او حسد لرل له تاسو څخه ښادي او خوښي وړي او د يوه محرک څيز په څير ستاسو د بدن وسلامتي ته زيان رسوي.

که ته بې بخښنې او له کينې څخه ډک شخص يې نو کله چې له يوې پيښې سره مخامخ شې فکر وکړه ستاسو په بدن کې به يو ډول هورمون په غير اختياري ډول سره د زياتيدو په حالت کې وي چې دغه حالت به تاسو نا آرامه ساتي. بايد په دې پوهه سې چې بخښنه يواځې د الفاظو نوم نه دی بلکه له ځان څخه د خښم او غم او درد ليري کولو ته بخښنه وايي.

چې يو ستونزه او مشکل پيښ شي بيا دهغه مشکل په اړوند سوچ کول ستاسو د وينې فشار لوړوي او په راتلونکي وخت کې ستاسو د زړه د پاره هم ناوړه پايلې لري او تاسو له خوښۍ او خوشحالۍ څخه ليرې کوي او کينه ساتل او بخښنه نه کول دې ته لاره هواروي چې ستا دوستان له تاسو څخه بې اعتماده کړي.

بايد هغه منفي افکار لکه حسد نفرت کرکه او انتقام اخيستل دغه منفي افکار بايد په ترحم محبت او دوستي سره بدل کړي. بايد پردې هم غور وکړو چې د تاريخ په اوږدو کې بخښنه کول موږ ته له پيغمبرانو ع څخه راپاتې ده او الله تعالی چې ددې ټول کاينات رب او پالونکی دی هغه هم بخښنه کوي وخپلو بندګانو ته. بخښنه کولای شي چې ستاسو د بدن اضطرابي او سرګرداني ختم کړي او ستاسو د خښم او کينې انرژي په آرامي او هوسايي بدله کړي.

**که ته بخښنه ونکړې نـو سـتا پـه زړه کښې به د حسد او انتقام لمبې تل بلـې وي او تاسو به ښکاره خبره ده لـه يـوې روحـي ستونزې سره مخامخ کړي.**

**د انسان پر مغزو تحقيق او څېړنه شوې او دې نتيجې ته رسيدلې ده چـې د انســان عاطفي سيستم او د وينې د جريان حالت په بخښنه کولو سره پرمختګ او وده کوي.**

**کوم وخت چې مو چې يـو څـوک پـه تکليف کوي نو هغه څه چـې هغـه تـه يـې ووايو بايد پر يوه کاغذ يـې لـه ځـان سـره وليکو، دغه ذهني خبرې به تر يو حده زمــوږ د آرامۍ سبب شي.**

**دغه کار موږ ته دا زمينه برابروي چې د خپل احساس ټولې خبرې د کاغذ پر مخ په يو په يو بيان کړو او يو ډول منفي انرژي لـه خپل ذهن څخه وباسو. نو په همدې ترتيـب سره به مو دخښم او ناراحتۍ احســاس کـم شي او ښه به وتوانيږو چې پرمخ ولاړشو.**

**اوس داسوال کيږي چـې آيـا بخښـنه کول هنر غـواړي کـه قـدرت؟ جـواب يـې دادی چې بخښنه کول يو ډول قـدرت دی، ځکه په دنيا کې ستر او زورو خلک تيرشوي دي، هغوی ټولو دغـه قـدرت درلـودو چـې نوروته بخښنه وکړي او بخښنې يې کړي هم وې.**

## موبايل د خپل څښتن

## په روغتيا او نورو رازونو پوهېږي

يوه نوې څېړنـه وايـي، لـه ملفـون يـا موبايـل ټيلېفـون ترلاسـه کېـدونکو ماليکولونو د هغه د څښتن د روغتيا او ژوند د ډول پته لګېږي.

په کليفورنيا کې ساينسپوهان وايي، د ۴۰ کسانو د ملفونونو له ارزولو يـې کافين، د دېګ مسلو، د پوټکي د خونديتوب کريم او ژور خپګان د درملو پـه ګډون د مختلفو شيانو پاتې شوني ترلاسه کړي دي.

کله چې موږ پر يو شي لاس وهو، نـو د مـاليکولونو، کيميـاوي مـوادو او باکتريا په ګډون ډېر شيان ملفون ته لېږدول کېږي.

د څېړنې له مخې له لاس مينځلو سره سره ملفـون تـه د مختلفـو شـيانو د لېږد مخنيوی نشي کېدلی.

د کليفورنيا پوهنتون څېړندلې د ۴۰ کسانو پر موبايل ټيلېفونونو او لاسونو له ۵۰۰ د ډېرو شيانو ښېلګې ټولې کړې دي.

له هغه وروسته يـې د دې مـاليکولونو د ډيټـابېس پـه ېږنـدلو سره د هـر موبايل ټيلېفون د کارن د ژوند د ډول پروفايل جوړ کړ.

اټکل کېږي چې د انسان له پوټکي او خولو هم څو ماليکولونـه ملفـون ته لېږدول کېږي.

له مياشو د بچ کېدلو دوا او د لمرينو سترګيو اغېز هم پـر ملفـون تـر ډېـر مهال پاتې کېږي.

د انسان له پوټکي او خولو هم څو ماليکولونه ملفون ته لېږدول کېږي.

په تېر کې هم يوې څېړنې ښودلې وه چې کـوم کسـان تـر دريـو ورځـو استوګن نه وي پر پوټکي يې د هايجين په ګډون د نورو توليداتو پـاتې شـوني تر ډېر وخت پاتې کېږي.

د څېړونکو په خبره، دې څېړنې ښودلې چې د ملفون د څښـتن د ګـوتې له نښو پرته هم د هغه پته لګېدلی شي.

هغوی وايي، دا څېړنه دا هم معلومـوي چـې کـه ملفـون لرونکـی نـاروغ وي، نو دارو يې خوړلي او که نه.

د څېړندلې غړي وايي، په منځني ډول د يو انسان په پوټکي لږ تر لـږه زر ميکروبونه وي.



# د رسول الله ﷺ او کوچي کيسه

يوه ورځ يوه کوچي رسول الله ﷺ نه څه شی وغوښتل او هغه ورکړل، بيا رسول الله ﷺ ورته وويل: ښېګڼه مې درسره وکړه؟ کوچي وويل: نه، نه دې ښېګڼه وکړه او نه مهرباني، د کوچي په دې خبره ناست مسلمانان غوسه شول او هغه ته ورولاړ شول، خو رسول الله ﷺ هغوی منعه کړل. او ورته کړه يې په هغه کار مه لرئ.

رسول الله ﷺ کور ته ولاړ، کوچی يې هلته ورروغوښت او نور شی يې هم ورکړ، بيا يې ورته وويل: ښېګڼه مې درسره وکړه؟ هغه ورته وويل: جزاک الله خيرا، هو، خپلوي دې وپالله. رسول الله ﷺ ورته وويل: هلته زما د ملګرو مخکې دې چې کومه خبره وکړه، هغه باندې هغوی درته غوسه شول، نو که ستا خوښه وي د هغوی مخکې دا خبره وکړه چې ستا په اړه د هغوی غوسه ختمه شي، کوچي ورته وويل: سمه ده.

ماښام کوچی راغی، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: دې کوچي چې پرون کومه خبره وکړه له هغه وروسته موږ ده ته نور شی ورکړ، بيا خوشاله شو، کوچي ته يې مخ کړ ول همداسې ده؟ هغه وويل: هو، جزاک الله خيرا، خپلوي دې وباللـه، رسول الله ﷺ په دې وخت کې زيات خوشاله شو، دومره چې له خوښي يې مخ ځلېدی.

وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: زما او د دې کوچي مثال داسې دی، لکه له يوه سړي چې اوښه وتښتي او خلک يې د نيولو لپاره ورپسې شي، په دې سره هغه لا وويريږي او نوره هم په منډو شي، نو د اوښې څښتن په هغو غږ کړي: تاسو ما او زما اوښه سره پريږدئ زه نرمي ورسره کوم او په چل يې پوهيږم، د اوښې خاوند له مخه ورته راشي، لاس کې واښه ورته ونيسي، ورو ورو ورنږدې کيږي، څو اوښه ورشي، چو يې کړي او خپل بار پرې وتړي. نو دا کوچي مې که تاسو ته پرې ايښی وی، په هغه خبره به مو وژلی و او هغه به اور ته داخل شوی و.

رواه ابن حبان. وانظر الشفا للقاضي عياض ١/ ٢٥٣ ومناهل الصفا للحمزاوي

